د پوهنې وزارت

# د ښوونکي کتاب
# د مدني زده کړې د تدریس لارښود
# لسم ټولگی




د مدني زده کړې د تدریس لارښود- لسم ټولگی

د چاپ کال : ۱۳۹۹ هـ . ش.



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم

د پوهنې وزارت

# د ښوونکي کتاب

# د مدني زده کړو د تدریس لارښود

## لسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۹ هــ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون**: د مدنۍ زده کړو د تدریس لارښود

**مؤلفان**: د تعلیمي نصاب د مدنۍ زده کړو د څانګې د درسي کتابونو مؤلفان

**اډیټ کوونکي**: د پښتو ژبې د اډیټ څانګې علمي غړي

**ټولګی**: لسم

**د متن ژبه**: پښتو

**انکشاف ورکوونکی**: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی**: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال**: ۱۳۹۸ هجري شمسي

**برېښنالیک پته**: curriculum@moe.gov.af

**د پوهنې د وزیر پیغام**

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراگانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږگوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو او د ښوونکو د تدریس لاربښود محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، د دې لاربښود څخه په گټې اخیستنې سره، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې لاربښود کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وگړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

## لړلیک

# عمومیات

## د ښوونکي لپاره لازمي لارښوونې

## ښوونیز یا تعلیمي نصاب څه شی دی؟

په دې اړه هرڅوک بېلابېل نظر لري، څوک یې درسي مفردات ګڼي او څوك یې درسي کتاب بولي. د ښوونې او روزنې پوهانو یې هم بېلا بېل تعریفونه کړي دي. ښوونیز یا تعلیمي نصاب هغه لارښود دی چې د ښوونې او روزنې ټول فعالیتونه پکې شامل او تر لاسه کول یې موخه ده.

تعلیمي نصاب له ټاکلې پوهې، مهارتونو او ذهنیتونو څخه عبارت دی چې یوه تعلیمي موسسه د هغو زده کړه د خپلو زده کوونکو لپاره په پام کې نیسي. په بله وینا تعلیمي نصاب د یوې تعلیمي موسسې د ښوونیزو او روزنیزو زده کړو د پروګرام د ټولو برخو زده کول دي چې درسي کتاب، درسي مرستندویه توکي، د ښوونکي لارښود، ازمایښتونه او عملي کارونه پکې شامل دي.

هغه څه چې نن یې د ښوونې او روزنې د ماهرینو پام ځانته اړولی دی، د دې پوښتنې ځواب دی: د مفرداتو چمتو کوونکي او د درسي کتابونو لیکونکي باید څه شی په ټاکلو لارو چارو زده کونکو ته ورزده کړي چې په اوسني او راتلونکي ژوند کې یې ګټور وي؟

ټول په دې نظر دي چې کوچنیان په بېلابېلو شرایطو کې ژوند کوي او په راتلونکي کې له نوو موضوعګانو سره مخامخ کیږي. له دې امله زیاتره د دې پېژندل ډېر سخت دي چې هغوی ته د څه شي زده کړه اړینه ده او څه شي ورته اړینه نه ده او د زده کړې تر ټولو اغېزمنه لاره کومه یوه ده؟

له بله پلوه د ځواني پېرځوانان د خپلواکې د پرېکړې د کولو، د مسؤولیت منلو، راتلونکې ته د کتنې او مسایلو ته په ځېرد کتلو د ځانګړتیاوو له مخې له نورو پېرونو څخه جلا کوي. ځوانان له ټولنې سره رغنده راشه درشه او د لویانو نړۍ ته د ورګډېدولپاره د بېلابېلو ورتیاوو موندلو ته اړتیا لري. هغوی باید په دې پوه شي چې هغه ټولنه چې دوی پکې اوسیږي څنګه ټولنه ده او څومره پوهه او علمي ورتیاوې ورته پکار دي. هغوی ځان پېژندنې ته اړتیا لري چې پېښو او حوادثو ته څنګه ګوري؟ حقایق څنګه درك کولای شي؟ څنګه انتخاب او څنګه عمل کوي؟ هغوی هغه پوهې ته اړتیا لري چې فکر کولو، مطالعې او په ټولنیز ژوند کې څېړنې ته یې وهڅوي.

د پورتنۍ وینا په پام کې نیولو سره د (د مدني زده کړو) د درسي مفرداتو په چمتو کولو کې د زده کړې په نوو لارو چارو ټینګار شوی چې د پخوانیو لارو چارو پرځای پر هغه زده کړې ډېر ټینګار وشي چې د فعالې،ګډې، ابتکاري او انتقادي زده کړې پربنسټ ولاړه وي.

د فعالې او ګډې (مشارکتي) زده کړې یا فعالې زده کړې (Active Learning Method) د تدریس په بهیر کې ښوونکي ستره ونډه لري. د ښوونکي دنده په دې ځای کې د معلوماتو او پوهې په لېږدونه پای ته نه رسیږي. هغه د زده کړې، تجربې په غوږ نیولو او حفظولو پورې تړلې نه بولي. په دې رول کې ښوونکي د زده کړې د مطلوبوشرایطو لارښود او مرسته کوونکي دی. هغوی

د مطلبونو د یو اړخیز انتقال پر ځای د زده کړې پر لارو چارو، د تجربې په ترسره کولو او د مسئلې په حلولو ډېر ټینګار کوي. د ښوونکي د لارښود دکتاب یوه موخه هم د زده کړې لپاره د مناسبو لارو چارو وړاندې کول دي.

د ښوونکي د دې لارښود د تالیف د نورو موخو او لاملونو په ترڅ کې د زده کړو د موخو ځرګندول، د محتوا (متن) د ټاکلو اصول او د مدني زده کړو د درسي کتاب ارزول دي.

څرنګه چې درسي کتاب د مدني زده کړو لپاره چمتو شوی او د زده کوونکو د زده کړې لپاره د ډېرو تجربو پایلې پکې په پام کې نیول شوي دي، له دې امله د ښوونکي د لارښود کتاب چمتو کول اړین بلل شوي. باید ومنو چې تدریس او زده کړه یو نوښتګر اوآزمایښتي کار دی او نوښتګر ښوونکي په دې برخه کې نوي نوي شیان او لارې چارې رامنځته کوي. خو دا هم باید له یاده ونه ایستل شي چې د زده کړې د ستراتیژیو په ټاکلو کې، موخو د ارزونې ستراتیژۍ، د زده کوونکو ګټون او نورو اصولوته چې اروا پېژندنې، تربیتي اروا پوهنې او د زده کړې د اروا پوهنې علومو زموږ په وړاندې ایښي دي، باید سمه پاملرنه وشي. دا هم باید له یاده ونه اېستل شي چې متن د کومو اصولو له مخې وټاکل شي، د محتوا د همغږۍ کولو اصول کوم دي؟ د تدریس او ارزونې لارې چارې کومې دي او څه ارزښت لري؟ دا چې د مهمو مفهومونو راایستل څنګه سرته رسیږي، د ښوونکي په دې لارښود کې څرګند شوي دي.

## د ښوونکي لارښود څه شی دی؟

د ښوونکي لارښود د ښوونکي د زده کړې یوه وسیله ده، هغه کتاب دی چې له ښوونکي سره مرسته کوي چې د یوه درسي ساعت او یا د تعلیمي دورې په اوږدو کې د خپل تدریس پلان چمتو کړي. د ښوونکي په لارښود کې د هر لوست عمومي او خصوصي موخې، د تدریس وسایل، لارې چارې، په زده کوونکو کې د انګېزې رامنځته کول، د ښوونکي فعالیتونه، د زده کوونکو فعالیتونه، د زده کوونکو د زده کړې د پیاوړتیا برخه او ارزونه او په پای کې د لوست اړوند اضافي معلومات او اخځلیکونه په پام کې نیول شوي دي. د ښوونکي لارښود د دې لپاره لیکل کیږي چې ښوونکي د درسي پلان له جوړولو او د زده کړې په یوه پړاو کې د ښوونې او روزنې له عمومي موخو سره بلد کړي او له ښوونکو سره مرسته وکړي چې د هر لوست مفاهیم او موضوعات وپېژني، د لوست اړوند اضافي معلومات ورته چمتو کړي، د هېواد په ټولو ښوونځیو کې د درسي کتاب د یو ډول او همغږي تدریس لپاره لاره هواره کړي او په دې توګه د افغانستان په ټولو ښوونځیو کې د لوست تدریس په پام کې نیول شوې دوره کې سرته ورسوي او درسي کتاب بشپړ کړي. دا خبره اړینه کړي چې درسي کتاب، هغسې چې د هېواد په پلازمېنې یا د بل لوی ښار په کوم عصري ښوونځي کې تدریسیږي، د هېواد د لرې پرتو ولسوالیو او باندو په ښوونځیو کې هم هماغسې یو ډول او یو راز تدریس شي او لکه چې ویل کیږي د یوې انډولیزې او هر اړخیزې زده کړې لپاره په ټول هېواد کې لاره هواره کړي.

## د افغانستان د پوهنې ښوونیزه او روزنیزه پالیسي

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اساسي قانون په شپاړسمه، درېیم څلوېښتمه، څلور څلوېښتمه، پنځه څلوېښتمه، شپږڅلوېښتمه او اووه څلوېښتمه ماده کې د لیکل شوو احکامو او د افغانستان د پوهنې د قانون د شپږمې، اوومې مادې او نورو احکامو له مخې او د هېواد معنوي او مادي اړتیاوو او واقیعتونو ته په پام او د افغانستان د ښوونې او روزنې د نظام د اساسي لیکو د انځورولو په خاطر د افغانستان د اسلامي جمهوري دولت د پوهنې ښوونیزه او روزنیزه پالیسي په لاندې ټکو کې رانغاړل کیږي:

۱. د الله (جَلّ جَلاَلُه) د بنده ګی، د اسلامي احکامو او ارزښتونو تطبیق ته د پابندۍ، وطن دوستۍ، د ملي یووالي ټینګښت، ګډ ژوند او بشر دوستۍ په روحیې د هېواد د ماشومانو، تنکیو ځوانانو او ځوانانو لپاره، که ښځینه وي یا نرینه، د ښوونې او روزنې د شرایطو برابرول.

۲. له خپلواکۍ، ملي واکمنۍ، ځمکنۍ بشپړتیا، اسلامي ورورولۍ، ملي پیوستون، له سولې سره د مینې او فرهنګي بډاینې څخه د دفاع، د توپیر او زور زیاتي د ټولو بڼو او ډولونو د له منځه وړلو د روحیې پیاوړتیا.

۳. د ښوونیزو او روزنیزو موسسو بیا رغول، جوړول، پراختیا او سمبالول.

٤. په نړۍ کې له علمي مثبتو بدلونونو سره جوخت د هېواد د ښوونیز اوروزنیز سیستم پراختیا.

٥. د نورو هېوادونو له ښوونیزو اوروزنیزو رغندو او بریالیو تجربو څخه ګټه اخیستنه.

٦. د جنس، توکم، ژبې، مذهب، نژاد او ټولنیز دریځ له په پام کې نیولو پرته ټولو ته تر لومړنیو او منځنیو (۱- ۹) ټولګیو پورې په جبري او وړیا توګه د زده کړو د شرایطو برابرول.

۷. په (دولتي او خصوصي) ښوونځیو کې په هغو ژبو تدریس چې په اساسي قانون کې تایید شوي دي.

۸. د اسلام د سپیڅلي دین له زده کړو، د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اساسي قانون د ارزښتونو او د افغاني ټولنې له دودونو سره سم او پیداګوژیکي اصولو او عملي تجربو ته په پام او د افغانستان د ښوونې او روزنې د کیفي ښه والي په خاطر د افغانستان د پوهنې سیستم د هلکانو او نجونو د جلاوالي پر بنسټ ولاړ دی. له دې امله ګډه زده کړه د لومړنۍ دورې له دریم ټولګي څخه وروسته د زده کړې په هېڅ یوه موسسه کې، که دولتي وي یا خصوصي، کورونو، ورزشي کلپونو او نورو ځایونو کې جواز نه لري.

۹. د دریمو ژبو تدریس (د اساسي قانون ۱٦ ماده) په اړوندو سیمو کې د یو مضمون په توګه.

۱۰. د بیځایه شوو کورنیو، کډوالو او د ځانګړو اړتیاوو لرونکو زده کوونکو ته د ښوونې او روزنې د شرایطو برابرول.

۱۱. د اسلامي زده کړو د مدرسو، عمومي زده کړو، حرفوي او مسلکي ښوونځیو او د ښوونکي د روزنې موسسو پراخوالی او د هغوی سمبالول.

۱۲. د ښوونکي د علمي او مسلکي سویې لوړول.

۱۳. د ښوونکي د ژوندانه د حالت سمول.

۱٤. د بېسوادۍ د له منځه وړلو، د حیاتي سواد او د کارګري متممو ښوونځیو (نرینه او ښځینه) د پراخوالي لپاره هلې ځلې.

۱۵. د افغانستان د پلي شوو قوانينو په اړانه (چوکاټ) کې د پوهنې د مسلکي تخصصي، اداري ظرفيتونو په رغولو، سمبالولو او لوړولو کې د هېوادونو، نړيوالو موسسو، غير دولتي موسسو او اشخاصو له بي غرضه او بشر دوستانه مرستو او ونډې څخه ملاتړ.

۱٦. د برابرې ښوونې پياوړتيا او د هېواد په مرکز او ولايتونو کې د ښوونيزو او روزنيزو امکاناتو سم عادلانه وېش.

۱۷. د تاوتريخوالي، توپير، ناروا جګړو، نشه يي توکو او اخلاقي فسادونو په څېر د ناوړو ځيزونو پر زيانونو د زده کوونکو خبرول.

۱۸. ازآدۍ، سولې، سوله ييز ګډ ژوند، شورا او دموکراسۍ، د بشري حقونو درناوي او د استوګنې د چاپېريال د ساتنې په څېر غوره ارزښتونو ته د زده کوونکو هڅول.

۱۹. له اسلامي احکامو او ارزښتونو سره سم د نجونو ښوونې او روزنې ته هراړخيزه پاملرنه او د نجونو او هلکانو د ښوونځيو ترمنځ د برابرۍ په پام کې نيول.

۲۰. د خاصو زده کړو (ډېرو هوښيارو، ړندو، کڼو او ذهني وروسته پاتې زده کوونکو) ته پام او د ښوونې او روزنې لپاره يې اغيزمنې او ګټورې لارې چارې لټول.

۲۱. د هېواد د نافذو قوانينو په اړانه کې د افغانستان د اسلامي جمهوريت د پوهنې د تعليمي نصاب، (دولتي او خصوصي) ښوونځي کې له تدريس او درسي موادو څخه د ګټې اخيستنې څارنه او نظارت.

۲۲. د بدني روزنې د ودې لپاره د شرايطو برابرول.

۲۳. د علمي برياوو او مسلکي تجربو د راکړې ورکړې په موخه د تعليمي نصاب د پراختيا، د اسلامي زده کړو د معينيت او د ښوونکي د روزنې، د ساينس د مرکز د رياستونو او په هېواد کې د اړوندو پوهنتونونو او نورواداروتر منځ د اړيکو د ټينګښت او لا زياتې همغږۍ رامنځته کول.

## د لوی خدای (جَلَّ جَلاَلُه) په مرسته به د هېواد په پوهنه کې ددغې پاليسۍ په پلي کولو سره لاندې لويې پايلې ترلاسه شي:

- په اسلامي روحيې د هېواد د اولادونو روزل، د الله (جَلَّ جَلاَلُه) د رضا ترلاسه کول او د يوې سوکاله او نېکمرغې ټولنې رامنځته کول.
- د ملي هويت ساتنه.
- د مسلمانو، هېوادپالو، ګټورو، ژمنو او متمدنو انسانانو په توګه د هېواد د اولاد سالمه روزنه.
- د نړۍ او ټولنې له علمي معيارونو سره سم د بريالي تطبيق په موخه د پوهې، مهارتونو او رغنده تفکر تر لاسه کول.
- دکار موندلو لپاره د لازمو وړتياوو د ترلاسه کولو او په بري سره دکار مارکيټ ته د ورګډېدو په منظور د زده کوونکو د پوهې د کچې لوړول.

## په افغانستان کې د ښوونې او روزنې عمومي موخې (هدفونه)

د هېواد د ښوونې او روزنې نظام د افغانستان د اسلامي جمهوريت د اساسي قانون د احکامو، د پوهنې د قانون او پاليسۍ پر بنسټ او د افغاني ټولنې اړتياوو او واقيعتونو ته په پام کې نيولو سره د زده کوونکو د سالمې روزنې په خاطر لاندې موخو ته ځان رسوي:

## الف ـ عقیدتي او اخلاقي موخې

۱. د اسلام د سپیڅلي دین پر اساساتو او ارزښتونو د ایمان او عقیدې پیاوړتیا، د قراني زده کړو او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د حدیثونو پر بنسټ د اسلامي لید پراخوالی.
۲. د الله (جَلّ جَلالُه) د پېژندنې په منظور د ځان پېژندنې د روحیې پیاوړتیا.
۳. پر ځان د ویسا او پر اخلاقي ښیګڼو د پابندۍ د روحیې پیاوړتیا،.
٤. د نظم او دسپلین د منبت د روحیې وده او روزنه او د قانوني احکامو او ارزښتونو منل.
۵. د دیني، ټولنیزو، ښوونیزو او روزنیزو ارزښتونو په وړاندې مسؤولیت ته د غاړې ایښودلو د روحیې پیاوړتیا.

## ب ـ د زده کړې او روزنې موخې

۱. د زده کړې د مهارتونو لاسته راوړل او پیاوړتیا، لکه: اورېدل، خبرې کول، لوستل، لیکل، په رسمي او بهرنیو ژبو کې د شمېر او حسن خط کارول،
۲. د پوهنو، فنونو او معاصرې تکنالوژۍ زده کړه او د اړتیا وړ فردي او ټولنیزو مهارتونو ترلاسه کول.
۳. د زده کړې د وړتیاوو وده او د زده کړې په اوږدو کې ځاني زده کړه او ارزونه.
٤. په علمي، ادبي، فرهنګي او فني ډګرونو کې د تفکر، استدلال، مطالعې، څیړنې، تشخیص او نوښت د وړتیاوو وده او پراختیا.
۵. د فردي او ټولنیزو ستونزو د پېژندلو او د هغو د حل د لارو د پیدا کیدو لپاره د وړتیاوو ترلاسه کول.

## ج ـ فرهنګي، ادبي او هنري موخې

۱. د فرهنګ، ادب او رغنده هنر په برخو کې د زده کوونکو د فطري وړتیاوو وده او پراختیا او د تاریخي، فرهنګي، ادبي میراثونو او شتمنیو د پېژندلو، ساتلو او درناوي روحیه.
۲. د افغانستان، اسلامي تمدن او د نورو هېوادونو له تاریخ، ادب او فرهنګ سره د پېژندګلوي ترلاسه کول.
۳. د فرهنګ، ملي هنرونو، د افغاني ټولنې د غوره او سالمو ادآبو او دودونو پراختیا او د هغوی د اصالت ساتنه.
٤. د تمرین او یوکسیزو او ډله ییزو فعالیتونو له لارې د ادبي او هنري مهارتونو پراختیا.

## د ـ مدني او ټولنیزې موخې

۱. د خپلواکۍ، وطن دوستۍ او آزادۍ غوښتلو، د اسلامي ارزښتونو او ملي نوامیسو د ساتنې د روحیې پیاوړتیا او د انسانانو د حقونو د برابرۍ په پام کې نیولو په بنسټ د کورنیو اړیکو ټینګښت.
۲. د اسلامي ورورولۍ، مرستې، سولې، ټولنیز عدالت، ملي او نړیوال پیوستون د روحیې پیاوړتیا.
۳. د خیر غوښتنې د حس پراختیا، د اخلاقي ښېګڼو لوړتیا او له زور زیاتي او ناروا جګړو څخه کرکه کول، له نشه یي توکو، مسکراتو اخلاقي او ټولنیزو فسادونو سره مبارزه.
٤. قانون ته د درناوۍ او د هغه د منبت د روحیې پیاوړتیا او د توکم، جنس، عمر، اقتصادي او ټولنیز دریځ او سیاسي تړاو له په پام کې نیولو پرته د هېواد د ټولو اتباعو د قانوني حقوقو ملاتړ.

۵.  په ټولنیزو اړیکو کې د زغم، سربښندنې او ایثار د روحیې پیاوړتیا او ټولنیزې ګټې پر فردي ګټو رومبی ګڼل.
٦.  د نیوکو کولو او نیوکو منلو، زغم او د نورو رایو ته د درناوي د روحیې پیاوړتیا.
۷.  انساني کرامت ته د درناوي د روحیې پیاوړتیا او پراختیا، د اشخاصو د عزت ساتل، په معاشرت او ټولنیزو اړیکو کې د بشري حقونو د ادابو په پام کې نیول.
۸.  په سوله ییز او رغنده ډول د توپیرونو او شخړو د اوارولو د روحیې پیاوړتیا.
۹.  د زغم او د نورو د ښه نظم منلو د فرهنګ پیاوړتیا،.
۱۰. د بشري ټولنې له علمي او تخنیکي تجربو او مثبتو بریاوو څخه د ګټې اخیستنې د روحیې پیاوړتیا.
۱۱.  د هر ډول توپیر د نه منلو او له منځه وړلو د روحیې پیاوړتیا او پراختیا.
۱۲. د ښځې انساني دریځ ته د درناوي د روحیې پیاوړتیا او د ښځو له حقونو څخه ملاتړ کول.
۱۳. د مور او پلار، مشرانو، ګاونډیانو، هېوادوالو او نورو انسانانو حقونو ته د درناوي د روحیې پیاوړتیا.
١٤.  د استوګنې د چاپېریال او سمسورتیا د ساتنې د روحیې پیاوړتیا، پر ځارویو زړه سوی او له طبیعي ژوندانه او نباتاتو څخه ملاتړ کول.
۱۵.  د اوبو د زېرمو د ساتنې د روحیې پیاوړتیا، د اوبو په کارولو کې زیاتی نه کول او د سیندونو، ویالو، کاریزونو او ځاګانو د اوبو له ککړتیا څخه مخنیوی.

## هـ ـ اقتصادي موخې

۱.  د نارینه او ښځو لپاره په انساني ژوند کې د اقتصاد پر ارزښت پوهېدل، د ټولنې پراختیا او اقتصادي ودې او له کورنې اقتصاد او فردي سلوک سره د اقتصادي فعالیتونو تړاو ته پاملرنه.
۲.  د کار پر ارزښت او اهمیت پوهېدل او د بیوزلۍ د له منځه وړلو په خاطر په ګټورو دندو کې د کار د روحیې پیاوړتیا.
۳.  د سپما او قناعت د روحیې رامنځته کول او له بې ځایه او بې ګټې مصرف څخه د مخنیوي د روحیې پیاوړتیا.
٤.  د هېواد د اقتصادي سرچینو پېژندل، له هغو څخه د را ایستنې په سمو لارو چارو پوهېدل او د ملي ګټو، شتمنیو او پانګو د ساتلو د روحیې پیاوړتیا.
۵.  د ټکنالوژۍ له پرمختګ سره یوځای د بېلابېلو کسبونو او تولیدي دندو پېژندل، د ملي عایداتو د زیاتوالي او د بېکارۍ او د بل پر اوږو د بارېدو د مخنیوی په خاطر د لاسي او سیمه ییزو صنایعو را ژوندي کول او رواجول.
٦.  په معاملو او اقتصادي فعالیتونو کې د اخلاقي اصولو په پام کې د نیولو د روحیې پیاوړتیا اود نامشروعو اقتصادي فعالیتونو پر خلاف مبارزه.
۷.  د حرفه یي فعالیتونو زده کړې ته د نجونو او هلکانو دواړو هڅول.
۸.  د عرضې او تقاضا پر اړیکو د زده کوونکو د پوهې د کچې لوړول.
۹.  د انصاف او کاري اخلاقو رواجول او پر کار د نارینه او ښځو لپاره د ګومارونکو او کارکوونکو ترمنځ د کار قانون ته درناوی.

## و - روغتيايي موخې

۱. د پاک ساتنې (حفظ الصحې) او د فردي او ټولنيزې روغتيا په اړه د ښه ژوند په لارو چارو پوهېدل.

۲. د عمومي حفظ الصحې او د چاپېريال د پاک ساتنې د روحيې پراختيا او پياوړتيا.

۳. له ناروغيو څخه د ساتلو په موخه له روغتيايي پوهې څخه برخمن کېدل او د اساسي مهارتونو پياوړي کول.

٤. د پاکۍ او صفايي د ارزښت پېژندلو او د خلکو د رواني او جسمي روغتيا په خاطر، د ژوندانه له ښو او ګټورو لارو چارو څخه ګټه اخېستل.

د مور او ماشوم روغتيا ته پاملرنه او د هغوی ننګه او ملاتړ کول.

## ز- دثانوي دورې (۱۰ - ۱۲)ټولګي موخې:

- د تيرو ښوونيزو او روزنيزو دورو د برياوو ځواکمنول او لوړو زده کړو ته چمتووالی.
- د تفکر ځواک وده او لا پراختيا، په ديني مسايلو او اعتقادي بنسټونو کې ژور فکر او د معلوماتو تر لاسه کول او د ژوندانه د نظام په توګه د اسلام د دين له زده کړو سره د زده کوونکو زيات بلدول.
- د نفس پاکوالی او پر خدای (جَلّ جَلالُه) او اسلامي لارښوونو باندې د ايمان لرلو پر بنسټ د اخلاقي ښيګڼو پياوړتيا.
- په زده کوونکو کې د ښوونې او روزنې د زده کړې د روحيې پياوړتيا او د مناسبو شرايطو برابرول.
- د پوهنو، بشري تجربو او پرمختللې ټکنالوژۍ په مرسته په طبيعت کې د موجودو قوانينو او د نړۍ د پټو رازونو د پېژندلو لپاره هلې ځلې.
- د رسمي او مورنۍ ژبې لا ښه زده کړه، د زده کوونکو د ادبي پوهې پراختيا او د بهرنيو ژبو زده کول.
- د اړتيا وړ پوهنو او فنونو زده کړه او د فردي او ټولنيزو مهارتونو تر لاسه کول.
- له اسلامي ارزښتونو او د ملي فرهنګ له مثبتو غوښتنو سره سم له هنر سره د زده کوونکو بلدول او له هغو څخه په زړه پورې ګټه اخېستل.
- د هېواد د ادبي، فرهنګي، هنري او تاريخي ميراثونو د ساتنې د روحيې وده،.
- په زده کوونکو کې د مرستې له روحيې او سالمو سياليو سره مينه پيدا کول.
- د ملي نواميسو د ساتنې د روحيې پياوړتيا او د اسلامي حقوقو او اخلا قو پر بنسټ د کورنيو اړيکو د بنسټ ځواکمنول.
- د خير غوښتنې د حس پياوړتيا، د اخلاقي ښېګڼو او د سوله غوښتنې فضايلو لوړتيا، له تاوتريخوالي او ناروا جګړو سره ضديت له نشه يي توکو، الکولي څښاک او اخلاقي مفاسدو سره مبارزه.
- مسؤوليت ته د غاړې ايښودلو د روحيې پياوړتيا، د کورنيو او ټولنيزو چارو سم سرته رسول او په اسلامي، فرهنګي او ټولنيزو چارو کې ونډه اخېستل.
- په ټولنيزو اړيکو کې د زغم، سرښندنې او له ځانه تېرېدنې د روحيې پياوړتيا او ټولنيزې ګټې پر فردي ګټو لومړي بلل.
- د سبا ورځې لپاره د زده کوونکو چمتوکول، د کورنۍ د جوړښت له ارزښت او په هغې پورې له اړوندو شرعي احکامو څخه خبرتيا.

- د اقتصاد ارزښت ته پام او د زده کوونکو معنوي بشپړتیا او سوکالۍ ته د رسیدو د یوې وسیلې په توګه د هغې رغنده وده.
- د ښوونې او روزنې په بهیر کې د ځاني ارزونې د وړتیاوو ځواکمنول.
- له ورزش سره د زده کوونکو د مینې پراخول او د بدني او رواني روغتیا ښارنه.
- د فرهنګي یرغل په وړاندې له زده کوونکو سره مرسته او له بیځایه پېښو او تقلیدونو څخه د هغوی مخنیوی او د افغاني او اسلامي ارزښتونو او هویت د ساتلو له لارې د وخت له مثبتو پرمختګونو او تکنالوژۍ څخه د استفادې د روحیې پیاوړتیا.
- د زده کوونکو د استعدادونو د روزلو په موخه په فرهنګي او ټولنیزو فعالیتونو کې د هغوی د ګډون د روحیې پیاوړتیا.
- د مطالعې او کتاب لوستلو د فرهنګ وده.

## د منځپانګې د غوره کولو لارې چارې (اصول)

د منځپانګې په غوره کولو کې لاندې اصول په پام کې نیول شوي دي:

له اړتیاوو، علاقه مندۍ او باور سره همغږي کیدل، (د محتوا اعتبار د منطقي، پرله پسې والي، له پلټنو او تایید شوو کتابونو او له لومړنیو او مستندو سرچینو څخه ګټه اخېستل)، د ټولګي دننه او بهر د زده کوونکو له عمر او ذهني وړتیاوو سره سم د لازمو شرایطو برابرول.

## د منځپانګې د تنظیم او ترتیب اصول

د منځپانګې په تنظیم او ترتیب کې له لاندې لارو چارو څخه کار اخېستل کیږي:

د زده کوونکو د فردي او ټولنیزو اړتیاوو ترمنځ د تسلسل همغږي او انډول او همدارنګه د تدریس د لارو چارو او منځپانګې ترمنځ، د انډول ساتل.

## د تدریس ستراتیژي

دا کتاب د فعال او ګډ تدریس د اصولو پر بنسټ تالیف شوی دی. له دې امله ښایي د کتاب په تدریس کې له فعالو او مشارکتي لارو چارو څخه کار واخېستل شي، لکه: د مناظرې (Argument)، د پوښتنې او ځواب (Question & Answer)، د لکچر یا توضیحی (Lecture)، ډله ییز، د خبرو اترو او مباحثې (Group Discussion)، د نقش یا رول لوبولو ( Role Play)، د سیرعلمي(Excursion)، د ذهني یا فکري هڅونې (Brain Storming)، میتودونه پروژه یي میتود ( Project Method) دې هم په دې برخه کې ورزیات شي.

دې ټکي ته ښایي پام وشي چې تدریس یو نوښتي او ازمایښتي کار دی. نشي کېدای چې د یو لوست یا کتاب لپاره د یوې ټاکلې او یوازنۍ لارې وړاندیز وشي، ځکه د هېواد په بېلابېلو برخو کې له امکاناتو او شرایطو سره سره هر ټولګی او ښوونځی خپل ټاکلي شرایط لري. دا د دې معنا نه لري چې یوه ټاکلې لاره (د تدریس له فعالو ستراتیژو څخه ګټه) دې وړاندې نشي.

## د لوست اصلي برخې

هر لوست له لاندې برخو څخه جوړ شوی دی:

سرلیک (عنوان)، انځور، ورودي برخه، منځپانګه، منځنی فعالیت، وروستني فعالیتونه او کورنی دنده چې ځینې یې په لاندې ډول څېړل کیږي:

**د لوست سرلیک:** سرلیك لوست ته د زده کوونکو د ذهني چمتوالي لامل کیږي. کېدای شي د لوست له سرلیک څخه د یو فعالیت په توګه هم ګټه واخېستل شي.

## انځور، نقشه او شکل

په هر لوست کې له متن سره سم انځورونه او نقشې راغلې دي. انځورونه او نقشې نه یوازې دا چې کتاب لا په زړه پورې کوي، بلکې انګېزه هم رامنځته کوي.

## ورودي فعالیت

هر لوست په یوه فعالیت پیلیږي چې د هغو له مخې د زده کوونکو ونډه او فعالیت هم پیلیږي. فعالیت داسې کوم شی نه دی چې له متن څخه دې بېل په پام کې ونیول شي او یا دې متن او منځپانګه بېله تدریس شي.

## منځنی فعالیت

د هر لوست دویم فعالیت، هم لکه لومړي فعالیت (ورودي) ته ورته رول لري، یعنې د راوروسته متن د تدریس لپاره کارول کیږي او کله هم د لومړنیو مفهومونو د ټینګښت او بشپړوالي لپاره ترې کار اخېستل کېږي.

## وروستنی فعالیت

د هر لوست په پای کې داسې فعالیتونه راوړل شوي دي چې د لوست د منځپانګې له پیاوړتیا سره مرسته کوي او له مخې یې لوست هم ارزول کېدای شي.

## د لوست د اصلي پیغامونو په نښه کول (Key Concepts)

لومړی ښایي د «اصلي پیغامونو» معنا او مفهوم وپېژنو. هر لوست پوهنیزه موخه یا موخې لري. دا موخه یا موخې د یو یا څومفهومونو د زده کړې لپاره چمتو شوي دي. دا د لوست هماغه اصلي پیغامونه دي. د دې سریزې له مخې د لوست له اصلي پیغامونو څخه د ارزونې لپاره هم کار اخېستل کیږي، ځکه د زده کوونکو له خوا د دې عمل سرته رسول دا معنا لري چې هغوی لومړنی پوهه ترلاسه کړې ده.

کېدای شي د بېلابېلو متنونو د زده کړې او مطالعې مهارت او وړتیا (د لوست د اصلي پیغامونو په نښه کول) د زده کړې او ارزونې په پړاو کې د یو غوره مهارت په توګه وګڼل شي او په زده کوونکو کې د هغې رامنځته کول او پیاوړي کول یوه موخه بلل کیږي.

## د لوست لنډیز

د «لنډیز» فعالیت هم پخپله یو اساسي مهارت دی او هم د ارزونې لپاره کارول کیږي، چې ښایي زده کوونکي یې زده کړي.

د «لوست د لنډولو» وړتیا د تفکر یو مهم مهارت دی. د لوست د لنډولو له لارې کېدای شي پراخ معلومات په لنډ ډول بیان شي چې د لوست د متن موخه اسانه په لاس راشي. لنډیز په لنډه وینا د لوست د اصلي مفهومونو بیان دی. لنډیز په یوه وینا کې د ټولو جزیاتو نغښتل دي. د لنډیز توپیر د لوست د اصلي پیغامونو له راایستلو سره دادی چې د اصلي مفهومونو د یادولو پر ځای زیار ایستل کیږي مفهومونه یوه پلا سره یوځای شي او بیا بېرته نوی متن لاسته راشي.

## د لنډيز لپاره ځينې لارښوونې

۱- که غواړئ يو مطلب لنډ کړئ، زيار وباسئ له ليکلو او ياداشتولو پرته پرې پوه شئ.

۲ – لنډيز په خپلو عبارتونو وليکئ. د اصلي متن د جوړښت په څېر يې مه ليکئ. په دې کار ډاډ تر لاسه کوئ چې خپلې شخصي نظريې مو په لنډيز کې نه دي راوستي. د لنډيز هره کلمه او عبارت بايد پر متن ولاړ وي. لنډيز بايد د ټول متن ۱۵ – ۲۰ سلنه وي.

۳ – له لنډيز څخه وروسته د خپل ډاډ لپاره هغه له اصلي متن سره پرتله کړئ.

## ارزول (Evaluation)

ارزونه د زده کړې موخو ته د زده کوونکي د پرمختګ د معلومولو او ټاکلو لپاره له منظم بهير څخه عبارت ده. منظم بهير په دې معنا چې ارزونه ښايي د پلان له مخې منظمه سرته ورسيږي. په دې ترڅ کې د «زده کړې موخې» د دې لپاره دي چې په ارزونه کې بايد د زده کړې موخې له وړاندې ټاکل شوې وي. په دې توګه د زده کړې ارزونه د تدريس له څرنګوالي سره د مرستې، د ښوونکي په اړه د لوړپوړو چارواکو د پرېکړې، له زده کوونکو سره د مرستې او د تدريس په برخه کې د پلټنې په اړه د لارو چارو د معلومولو په منظور سرته رسيږي.

په ارزونه کې اساسي لارې چارې په دې بڼه وي چې د زده کړې د دورو موخو ته متوجه وي او پايلې يې زده کوونکو او ښوونکو ته د لارښوونې او له هغوی سره د مرستې لپاره وکارول شي. همدا راز ارزونه ښايي موخو، د تدريس لارو چارو او د درسي مضمون بېلابېلو توکو په پام کې نيولو سره سرته ورسيږي.

ارزونه د زده کړې د بهير د سمون لپاره سرته رسيږي. د زده کوونکو په اړه قضاوت بايد د هغوی د کړنو، چال چلند او شخصيت په اړه د هر اړخيزو معلوماتو پر بنسټ ترسره شي نه دا چې د ازموينو د نومرو له مخې. له بل پلوه زده کوونکي ښايي په ارزونه کې ورګډ شي، چې خپل ځان پخپله وارزولای شي. په لنډ ډول بايد د ارزونې لپاره اميدبښونکي شرايط په پام کې ونيول شي.

## په زده کړه کې د ارزونې اهميت او اړتيا

د زده کړې ارزونه دوې ګټې لري:

۱– زده کوونکي پوهېږي چې څومره علمي پرمختګ يې کړی او څومره برياليتوب يې تر لاسه کړی دی.

۲– ښوونکي پوهيږي چې د مضمون تدريس يې څومره بريالی و.

له خپل برياليتوب څخه د زده کوونکو خبرتيا د دې لامل کيږي چې زده کوونکي په سم ډول او ټاکلي لاره د خپل پرمختګ په اړه قضاوت وکړای شي او د زده کړې او برياليتوب لپاره د زيات مسؤوليت احساس وکړي. زده کوونکي خپل کمزوري ټکي وپېژني او ويې مني او د هغو د له منځه وړلو لپاره زيار وباسي. که چېرته ارزونه په ښه نيت او سم ډول سرته ورسيږي، پر ځان باندې د زده کوونکو ويسا پياوړې کيږي. د مضمون د تدريس له برياليتوب څخه د ښوونکي خبرتيا د دې لامل کيږي چې ښوونکی د لاسته راغلو معلوماتو له مخې د درسي مضمون تدريس په کمزورو او قوي ټکو وپوهيږي او د تدريس لاره چاره د هغې له مخې سمه کړي او د تدريس فن د زده کړې په بېلابېلو لارو چارو او د تدريس د نوو مهارتونو د زده کړې له لارې بډای کړي.

## د ارزونې بڼې

ارزونه د وخت او موخو له مخې په درېو ډولو وېشل کېدای شي:

تشخیصي، پرله پسې او وروستنۍ ارزونه.

الف: تشخیصي ارزونه د زده کړې په هر نوي پړاو کې د زده کوونکو د مخکنیو زده کړو او مهارتونو د معلومولو په موخه سرته رسېږي.

ب: پرله پسې ارزونه له منظمې او پرله پسې ارزونې څخه عبارت ده چې د ښوونیز کال په اوږدو کې په هر څپرکي یا لوست کې د زده کوونکو ترلاسه شوې زده کړه او پوهه ازمویل کېږي.

ج: وروستنۍ ازموینه د یوه ښوونیز کال په پای کې په هر ټولګي کې له زده کوونکو څخه د مفهومونو او مهارتونو د زده کړې د معلومولو لپاره تر سره کېږي.

## د تدریس د ستراتیژیو ډلبندي

د تدریس لارې چارې (د تدریس ستراتیژۍ) له بېلابېلو لارو چارو څخه ډلبندي کېدای شي. تر اوسه بېلا بېلې ډلبندۍ وړاندې شوې دي چې لاندې ډلبندي د هغو له ډلې څخه ده.

۱ – دودیزه یا غیر رسمي لاره چې په جوماتونو او غیر رسمي مدرسو کې ترسره کېږي.

۲ - د تدریس نوي میتودونه.

۳ – د لکچر میتود (وینا یا څرګندونې)،

٤ – د ذهني یا فکري هڅونې میتود،

٥ – اکتشافي میتود،

٦ – د مسئلې د حل میتود،

۷- د پوښتنې او ځواب میتود،

۸ – انفرادي میتود،

۹ – د خبرو اترو میتود،

۱۰ – د پروژې ورکولو میتود،

۱۱ – ډله ییز میتود،

۱۲ – د نمایش میتود،

۱۳ – د تمثیل میتود،

۱٤- استقرایي میتود،

۱٥ – ازمایښتي میتود،

۱٦ – د کیسې ویلو میتود،

۱۷ – تلفیقي یا ګډ میتود (په یوه لوست کې د څو میتودونو کارول).

د لوستونکو د لا زیاتو معلوماتو لپاره په لاندې ډول یوه بله ډلبندي هم راوړل کېږي:

## فعال دوه اړخيز ميتود

د تدريس يو شمېر ميتودونه ښوونکي او زده کوونکي له غوښتنې سره سم فعالوي او يادول او ورزده کول له دوه اړخيزې لارې ترسره کيږي. په دې ميتود کې مطلبونه او مفهومونه د ښوونکي او زده کوونکو له فعاليتونو څخه راوځي او هر يو انتخابي ميتود د تدريس مرکز جوړېږي. سربېره پر دې ښايي په هغې کې دننه له يوه يا څو ميتودونو څخه ګټه واخيستل شي. دا ميتودونه څو پړاوونه لري او په هغې کې تدريس په منظم ډول پيلېږي او د مفهوم تر موندلو پورې دوام مومي. د دې ميتودونو له ډلې څخه د استقرايي، د مسئلې د حل، د نقش د سرته رسولو، ازمايښتي او ... ميتودونو نومونه اخيستلای شو.

### ۱-ګډ يا مشارکتي ميتود

ګډ ميتود د زده کړې د بهير د فعاليدو له مخې د فعالو ميتودونو په ډله کې راځي. هغه څه چې مشارکتي ميتود له نورو فعالو ميتودونو څخه بېلوي، موخو ته د رسېدو لپاره د څو زده کوونکو همکاري او همفکري ده. ښايي د ښوونکي او زده کوونکو تر منځ فعاله زده کړه سرته ورسيږي، خو مشارکتي ميتود په ډله ييز ډول دی او په هغې کې د ډلې ګټې زيات اهميت لري.

### ۲ – غير فعال يا يو اړخيز ميتود

د تدريس يو شمېر نور ميتودونه لکه: د لکچر په ميتود کې زده کوونکي چوپ او ښوونکي فعال وي، ځکه معلومات په يو اړخيز ډول سرته رسيږي. څنګه چې دا ميتود اکتشافي ميتود نه دی، له دې امله په تدريس کې ترې ګټه نه اخېستل کيږي.

## د مضمون د تدريس وسيلې او بنسټيز توکي

### ۱ – د اړتيا وړ درسي مرستندوی توکي

توره تخته، تباشير، مارکر، د لوست کتاب، د ښوونکي لارښود، ورځپاڼې، مجلې، د زده کړې چارتونه، فلش کارتونه، جغرافيايي نقشې، کمپيوټر، انټرنيټ، سلايډونه، انځورونه، فلمونه، تاريخي اطلسونه، د ځمکې د کرې مودلونه، ګرافونه، د منډليف جدولونه، د تاريخي لړۍ شجرې، د موضوع په اړه تاريخي او داستاني مستند فلمونه، عکسونه، د نقاشی تابلوګانې، د علمي، تاريخي او ملي شخصيتونو عکسونه، د اعتبار وړ کتابونه او ماخذ، د سکو، کاغذي لوټونو او فلزي پيسو البومونه، ... د درسي مرستندويو توکو په ډلې کې راځي.

### ۲ - له ښوونکو څخه هيلې

### الف – عمومي وړتياوې

د معلمی له تجربې سره د ليسانس يا لږ تر لږه له دولسم ټولګي د پورته بری ليک لرل، د مضمون په باره کې د وروستنيو معلوماتو په اړه پوهه، د زده کوونکو په عمر او ذهن پورې پر اړوندو ځانګړتياوو پوهېدل، د فعال او مشارکتي تدريس په اړه معلومات او د زده کوونکو د ارزونې په اړه پوهه او معلومات، د ښوونکي له دندې سره مينه او د اخلاقي وړتياوو درلودل.

### ب: اختصاصي او مسلکي وړتیاوې

- د مختلفو لوستونو لپاره د درسي پلان د چمتوکولو وړتیا.
- د ټولګي د اداره کولو وړتیا.
- د درسي مرستندویه توکو د کارونې وړتیا.

### ۳ – له ښوونځي څخه غوښتنې

- د اړوند مضمون د تدریس لپاره د شرایطو برابرول(د لوست د کتابونو، د ښوونکي د لارښود او د درسي مرستندویو توکو چمتو کول).
- د زده کوونکو له میندو او پلرونو سره د منظمو اړیکو برابرول.
- د پلانونو په سر ته رسولو کې د پوهنې وزارت دمصوبو په پام کې نیول.
- په ټولګي کې د ښوونکي د اعمالو څارنه او د ښوونکي لارښوونه.
- په ښوونځي کې د کتابتون جوړول.
- د کورنیو په مرسته د ښوونکي او زده کوونکو د اړتیا وړ توکو برابرول.

### ۴ – د زده کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیلې

- د زده کوونکو د تعلیمي څرنګوالي په اړه د خپلو کوچنیانو له ښوونکو سره د اړیکو نیول.
- د زده کوونکو له درسي پرمختګ څخه خبرېدل.
- له ښوونځي سره پرله پسې مرسته او همکاري.

## مدني زده کړه څه ته وايي؟

مدني زده کړه له هغې پوهې، وړتیاوو او ذهنیتونو څخه چې مورږيې د ټولنې، ټولنیزوګروپونو، حکومتي نظام ، د بشري حقونو، ارزښتونو، او ټولنیزو دودونو، کورنیو او بهرنیو ټولنیزو بنسټونو څخه لاس ته راوړو، بحث کوي. مدني زده کړه یوه خپلواکه پوهنه نه ده، بلکې داسې یوه پوهه ده چې د ټولنپوهنې له علمي څانګو، حقوقو، سیاسي پوهنو، ټولنیزې اروا پوهنې، اخلاق پوهنې، انسان پوهنې او د لوست له نوو تګلارو لکه، زده کړې او د ژوند وړتیاوو، د بشري حقوقو له زده کړې، ټولنیزې زده کړې او اړیکو سره تړاو لري.

### د مدني زده کړو د ښوونې اهمیت

انسان ټولنیز موجود دی او انساني ټولنه د ارزښتونو، دودونو، قوانینو او مقرراتو پر بنسټ ولاړه ده. افراد د ټولنې د جوړېدو د بنسټیزو او اساسي غړو په توګه باید ارزښتونه، دودونه او د هغو سازمانونو بنسټونه او جوړښت په ښه توګه درک او وېږني چې وکړای شي د یوه پوه او فعال غړي په توګه په هغې کې ژوند وکړي.

هغه مضمون چې د مدني زده کړو په نامه د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې په تعلیمي نصاب کې ځای شوی دی له لاندې مهمو مدني موضوعاتو او مطلبونو څخه بحث کوي: ارزښتونه، دودونه او د افغاني ټولنې عقاید، رسنۍ، د دولتونو ډولونه، د افغانستان د اسلامي جمهوریت اساسي قانون، بیرغ او ملي سرود، د ټولنیزو خدمتونو سازمانونه، د ولسواکۍ (دموکراسۍ) معنا او ډولونه، ولسواکي په افغانستان کې، د بشر حقوق، په افغانستان کې د بشر د حقونو څرنګوالی، ملګري ملتونه، د ملګروملتونو اصلي او فرعي سازمانونه، د هغوی دندې او همدارنګه په ساده ژبه د ټولنپوهنې ځینې مهم بحثونه لکه فرهنګ، ټولنیز ګروپونه او ټولنیز بنسټونه او ځینې نور مسایل. له دې امله د مدني زده کړو ښوونه زده کوونکي د افغاني ټولنې له بنسټیزو ارزښتونو، دودونو او عقیدو سره اشناکوي. د بشر حقوق او ملګري ملتونه هغوی ته وربیژني، د ټولنپوهنې ځینې ساده اصول او قاعدې هغوی ته ورزده کوي چې له هغوی څخه د ټولنې پوه، فعال او ماهر غړي جوړکړي. د دې مضمون ښوونه به په زده کوونکو کې د مدني روحیې او ملي یووالي د رامنځته کیدو لامل وګرځي چې له هغو څخه سوله غوښتونکي، قانون منونکي او بانظمه انسانان جوړشي. دا مضمون د زده کړې په ټولې دورې کې ځای په ځای شوی، نو له دې امله خورا اهمیت لري. د مدني زده کړو اصلي او غوره مطلب د یوه هېوادوال ښه روزنه ده، یعنې هغه هېوادوال چې خپل او د نورو حقونه وپیژني، هغه هېوادوال چې د خپل هېواد او ټولنې له ستونزو خبر او په خپلو دندو عمل وکړي، رښتني او پاک لمنی واوسي، د هېواد په اداره کې په ولسواکۍ باور ولري او د هېواد د پرمختیا لپاره هڅه وکړي.

## د مدني زده کړو د زده کړې موخې:

زده کوونکي وکلای شي چې د مدني زده کړو مضمون دا لاندې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې ترلاسه کړي.

- زده کوونکي له ټولنیزو بنسټونو ( اقتصاد، سیاست، ښوونې اوروزنې او دین ) سره اشناکړي.
- هغوی د افغاني ټولنې له فرهنګ سره اشناکړي.
- د هېواد ملي نښې نښانونه ( بیرغ او ملي سرود) زده کوونکو ته تشریح کړي.
- د دولت ډولونه او د هغو توپیرونه زده کوونکو ته توضیح کړي.
- د افغانستان د اسلامي جمهوریت ارکان (درې ګونې قوې) تشریح کړي.
- د هېواد ټولنیزوخدمتونو سازمانونه او د هر یوه دندې زده کوونکو ته تشریح کړي.
- زده کوونکي د بشر له حقونو سره اشنا کړي او د هېواد حالت له دې لوري وڅېړي.
- هغوی له ملګروملتونو او د هغه له اصلي او فرعي سازمانونو سره اشنا کړي.
- زده کوونکي د ټولو انسانانو او په ځانګړې توګه د خپلو هېوادوالو په وړاندې مثبت ذهنیت ومومي.
- زده کوونکي باید وکولای شي چې په ټولنیزو، سیاسي، اقتصادي کارونو او د کورنۍ او د هېواد د چاپېریال په کارونو کې فعاله ونډه واخلي.
- زده کوونکي باید د منفي پدیدو، لکه: تاوتریخوالي، جګړې ، ترهګرۍ، له نشه یي توکو، نفاق او داسې نورو څخه په ذهني او عملي توګه ځان وساتي.
- زده کوونکي باید وکولای شي خپلې دندې د هېواد او اساسي قانون په وړاندې درک او په پلي کولو کې یې هڅه وکړي.

# د مضمون د تدریس لارښود

د دې لارښود په لومړۍ برخه کې د درسي مضمون له عمومیاتو او لومړنیو خبرو او د تدریس او ارزونې له لارو چارو سره بلدشوئ. په دې برخه کې به د تدریس له کلني پلان او د هر لوست د تدریس له لارو چارو سره بلدشئ.

## د تدریس کلنی پلان

د تدریس کلنی پلان څرګندوي چې د لوست کتاب د یوه تعلیمي کال په ورځو باندې څنګه وویشل شي. زموږ په هېواد کې تعلیمي کال د سړو او تودو سیمو لپاره یو له بله توپیر کوي. په تودو سیمو کې تعلیمي کال د وري د میاشتې په پنځلسمه نېټه پیلیږي، د مرغومي د میاشتې له پنځلسمې نیټې څخه تر وروستۍ نیټې پورې څلورنیم میاشتنۍ آزموینه اخېستل کېږي، له ازموینې وروسته زده کوونکي لس ورځې رخصتیږي. کلنۍ آزموینه د غبرګولي د میاشتې له لومړۍ نیټې څخه پیل او تر پنځلسمې نیټې پورې پای ته رسیږي او له هغې وروسته زده کوونکي درې میاشتې رخصتیږي.

په سړو سیمو کې تعلیمي کال د وري په دویمه نېټه پیلیږي. څلورنیم میاشتنۍ آزموینه د چنګاښ د میاشتې په پنځلسمه نیټه پیل کېږي او د دې میاشتې تر وروستۍ نیټې پای ته رسیږي. زده کوونکي له آزموینې څخه وروسته د زمري د میاشتې په دوو لومړنیو اونیو کې لس ورځې رخصتیږي. د تعلیمي کال په پای کې د لیندۍ د میاشتې په لومړیو دوو اونیو کې کلنۍ آزموینه پیلیږي او له هغې وروسته زده کوونکي د ژمي په درې میاشتې رخصتۍ ځي.

تعلیمي کال ۲۸ اونۍ دوام مومي. د کلني پلان د تنظیم لپاره د لوست د کتاب مخونه پر ۲۸ سرلیکونو وېشل کېږي. په یوې اونۍ کې د هر سرلیک لاسته راغلې شمېره د تدریس برخه څرګندوي.

د هر لوست په ورځني پلان کې د هر لوست د زده کړې موخې، د تدریس او ارزونې لارې چارې، د تدریس توکي، د تدریس فعالیتونه ( د لومړنیو فعالیتونو سرته رسول، لکه: سلام، روغبړ، د حاضرۍ اخېستل، د پخواني لوست پوښتنه، د انګېزې رامنځته کول، د نوي لوست وړاندې کول او د زده کوونکو د زده کړې ارزول) د لوست د متن او پای په اړه پوښتنې او د زده کوونکو او ښوونکو لپاره د اضافي معلوماتو برخه جوړوي. هغه په ځیر سره وګورئ او په پوره زړه سوي یې د امکان تر حده پورې په زده کوونکو عملي کړئ.

## لومړي لوست

### د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د مطلبونو سر لیکونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | فر هنگ | |
| عمومي موخه | د فرهنگ پېژندنه. | |
| د لوست(پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست په لوستلو سره لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د فرهنگ پر معنا به پوه شي،<br>• فرهنگ به تعریف کړای شي،<br>• د فرهنگ په هکله به مثبت نظر پیداکړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د لوست مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او لیدنه. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام اچول او روغبړ کول، د ټولگي د نظم برابرول، د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل او د تېر کال د لوستونو په اړه له زده کوونکو څخه پوښتنې کول. | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د لومړي لوست انځورونو ته وگورئ او په هکله یې خپل آند څرگند کړئ. | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۳) مخ پرانیزي، د نوي لوست د فعالیت په اړه دې خبرې سره وکړي، هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه دې راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه اواصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتختې باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکوته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- خلک خپل اولادونه په ښوونځي کې له شاملیدو څخه مخکې د لوست لپاره چېر ته استوي؟<br>۲- د یوه ملت لپاره څه شی ارزښت لري؟<br>۳- د ټولنپوهنې د علم له نظره قواعد څه ته وایي؟<br>٤- سمبول څه شي ته وایي.<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله اړینې څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړې یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی دی، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- خلک خپل اولادونه د ښوونځي له تګ څخه د مخه جومات ته استوي چې دیني زده کړې او اسلامي اساسات زده کړي.<br>۲- د یوه ملت لپاره دین،ملي ګټې، عزت، د ځمکنۍ بشپړتیا اوخپلواکي ډېر ارزښت لري.<br>۳- قواعد د ټولنپوهنې د علم له مخې له هغو مقرراتو او کړنلارو څخه عبارت دي چې ټولنه د هغوی له لارې د خپلو غړو کړنې او چلن سموي.<br>٤- سمبولونه هغه نښې دي چې د انسان د هغو حالاتو چې په ورځني ژوند کې ورسره مخا مخ کېږي ښکارند وی دي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- د ټولنې ټولې مادي او معنوي لاسته راوړنې فرهنګ بلل کېږي.

۲- فرهنګي ارزښت داسې معیار او اندازه ده چې خلك د هغه په واسطه د یوه شي یا یوه شخص ښېګڼه او ښایست ارزوي او هغه د خپل ټولنیز ژوند لارښود ګڼي.

۳- د ژبې په فرهنګونو کې، د فرهنګ اصطلاح د دود، دستور، نظریاتو، هنر او د ژوند کولو د لارو یوه پیچلې پدیده ده چې د قومونو د تاریخي تجربو په بهیر کې یې جوړښت موندلی دی.

٤- که چېرته د ټولنې له قواعدو څخه سرغړونه وشي، سر غړونکي ته یې سزا ورکول کېږي.

٥- انسانان ژبې په کورنۍ او خپل چا پېریال کې زده کوي. د ژبې وده د فرهنګ منلو له لارې سرته رسېږي.

۶- سمبولونه هغه نښې دي چې انسانان په ورځني ژوند کې ورسره مخامخ کېږي او د حالاتو ښکارندویي کوي.

### اضافي معلومات

### د فرهنګ معنا

فرهنګ یوه لرغونې: کلمه ده او په اوستایي ژبه کې له دوه برخو( فر) او (هنګ) څخه جوړه شوې ده. (فر) د پیل کلمه د جګ، مخکې، وړاندې په معنا او ( هنګ) د اوستایي ریښې ( شنکا) یعنې راویستل، درنښت او عزت پر معنا ده.

( بهنګ) د با عزته او کلك او هنګ د هوښیارۍ، پوهې، فهم او ځیرك په معنا دی. فرهنګ په لغت کې د پورته او د باندې کشولو پر معنا دی. باید پوه شو چې دلته د یوې اصطلاح د لغوي معنا او د ریښې پیداکول زموږ مقصد نه دی، بلکې د اصطلاح استنباطي مفهوم چې عام خلك یې له یوې اصطلاح څخه کوي د اعتبار وړ دی، خو د فرهنګ کلمه د وخت په تېریدو سره هېڅکله د پورته کشولو په معنا نه ده راغلې.

فرهنګ د ادب، سمې روزنې، پوهې، معرفت، حکمت، هنر او .... نه پرته د رایې، پوهې، عقل، سمه روزنه، ځواکمنه خبرتیا، د ښو او بدو د توپیر ځواك، د هرشي د حد پېژندنه، اخلاقي فضیلت، د ښو صفتونو ټولګه، روحي او معنوي فضیلتونه، هغه څه چې د اخلاقو، ښو کړو وړو او ویناوو په کړۍ کې راځي، له معنا سره مترادف ده.

په عربي ژبه کې د فرهنګ مفهوم د ثقافت له اصطلاح سره معادل (کلچر) انګلیسي او (کلتور) فرانسوي، دګیا او د کښت پر معنا هم راغلې ده.

# دویم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **د فر هنگ ځانگړتیاوې** | |
| لو یه موخه | د عام او ځانگړي فرهنگ پېژندنه. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د فرهنگ پر ځانگړتیاوو به پوه شي،<br>• فرهنگ د لیږد او زده کړې وړ بیان به و کړای شي،<br>• د ثابت، خو په عین حال کې تغییر کوونکي فرهنگ سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولگي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولگي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه:سمبو لونه څه شي ته وایي ؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د ( ۹ ) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۹) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه دې راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح گانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولگیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکوته لوست په ساده توگه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- خدای(جَلَّ جَلاَلُه) انسانان د څه شي پواسطه له ځارویو څخه بېل کړي دي؟<br>۲- کله چې تجربې له تیرو نسلونو څخه را ولېږدول شي، څه شی موږ ته را زده کوي ؟<br>۳- که یو کس د اجبار ترځنگ اختیار ونه لري څه به پېښ شي؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله اړینې څرگندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح گانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- انسان د عقل او شعور له مخې له ځارویو څخه توپیر کېږي .<br>۲- موږ ته دا رازده کوي چې څرنگه هغه مسایل چې موږ له هغو سره مخامخ کېږو،حل کړو، څرنگه خپلې اړتیاوې په ښه توگه پوره کړو او ښه ژوند وکړو.<br>۳- اختراعگانې، کشفونه او پرمختگ به منځته را نه شي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرگندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمگړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- هیڅ ډله او یا قوم دا نه مني چې د هغوی فرهنګ ټیټ او بد وي. ټول فرهنګونه د کورني نظام د یوې ځانګړې ژبې او شکل لرونکي دي.
۲- د فرهنګ له عامو ځانګړتیاووڅخه کولای شو، د ژبې، خوراک او د جامو اغوستلوطریقه او همدارنګه د هنر،لوبواو داسې نورو نومونه واخلو.
۳- له دې امله چې خدای(جَلّ جَلالُه) انسان ته عقل او شعور ور کړی دی او په زیاته کچه په دغې پوهې چې په ټولنیز ژوند کې یې زده کوي، عمل کوي.
٤- لاندې مطالب مطالعه کړئ، سمې جملې پر(√) علامې اوغلطې جملې په(×)علامې سره په نښه کړئ.
الف- د انسان او ژویو ترمنځ اساسي اواصلي توپیرد انسان د فرهنګ لرل دي. ( √ )
ب- فرهنګ نسبي نه دی. ( × )
ج- فرهنګ د زمانې په اوږدو کې غني کېږي، لوړیږي او وده کوي. ( √ )

### اضافي معلومات

**فرهنګ**

فرهنګ د ژوند له داسې لارې سره اړه لري چې د ټولنې وګړي هغه زده کوي او پرې عمل کوي او له یو نسل څخه یې بل نسل ته لیږدوي.
فرهنګ کولای شو د یوې ځانګړې ټولنې، عملي، عقیدوي او اکتسابي ځانګړتیاوو د ټولګې په توګه تعریف کړو.
د فرهنګي ځانګړنو مفهوم په لاندې ډول دی:
۱-فرهنګ د انسان د لاس محصول دی چې وروسته له جوړښت څخه په خپله بیا د انسان په جوړښت کې برخه اخلي.
۲- فرهنګ یو اکتسابي امر دی چې د رسمي او غیر رسمي ښوونې له لارې عملي کېږي.
۳- فرهنګ د ټولنیزو بنسټونو یوه منظومه ده چې په خپله د سازمان ورکړل شوو عیني او ذهني کړو وړو او چلندونو د بېلګو له مجموعې څخه جوړه شوې ده.
٤- د هرې ټولنې فرهنګ داسې ځانګړتیاوې لري چې هغه د نورو ټولنو له فرهنګونو سره توپیر لري.
٥- د هرې ټولنې فرهنګ د کوچنیو فرهنګونو له مجموعې څخه جوړ شوی دی،لکه: ښاري فرهنګ، د ټولنیزو بنسټونو فرهنګ......د کوچنیو فرهنګونو عناصر په تعامل کې دي، له دې کبله د کلیوالي فرهنګ عناصر په ښاري ژوند کې، بالعکس د لوړو طبقو د فرهنګ عناصر د ټولنې په ټیټه طبقه کې لیدای شو.
٦- فرهنګي عناصر او فرهنګي ارزښتونه د خپریدو او لېږد وړ دي او د زمانې په اوږدوکې بدلون مومي، خو له دیني ارزښتونو پرته.
۷- هرفرهنګ د یو جوړښت او اصولو لرونکی وي چې د هغه د عملي څېړنې لاره هواروي.
۸- ټولنیز بدلونونه تر هغو چې د باورونو او عقیدو په کچه څرګند نشي، کلک نه وي.
۹- د فرهنګ اصلي دنده، د منل شوو عملي بېلګو د ساتنې او دوام او په ټولنه کې د وګړو د عقیدو او احساساتو منظمول دي.
۱۰- ټولنیزه مرسته چې پرته له ټولنیز ژوند څخه خپل یو موټی توب او یوالی له لاسه ورکوي، د ګډو فرهنګي عقیدو او په هغو اصولو او موازینو پابندي ده چې عمومي خیر نه، پر فردي ګټو غوره والی ورکوي.

## دریم لوست

## د لوست وخت (یو درسي ساعت)

| | | |
|---|---|---|
| **د سر لیکونو مطلبونه** | **د مطلبونو بیان** | |
| **د لوست سرلیک** | **فرهنگ او ټولنه** | |
| **عمومي موخې** | د فر هنگ او ټولنې پېژندنه. | |
| **(پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې)** | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي.<br>• د فرهنگ او ټولنې په اړیکو به پوه شي،<br>• مادي او معنوي فرهنگونه به پرتله کړای شي،<br>• فرهنگ ته د بشري ټولنې د اړتیا د لاملونو په اړه به مثبت نظر پیدا کړي. | |
| **د ښوونې لارې چارې** | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| **د زده کړې د اړتیا وړ وسایل** | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| **د ارزونې لارې چارې** | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| **په ټولگي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه** | **لو مړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولگي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کور نۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د فرهنگ د عامو ځانگړتیاوو نومونه چې د انسانانو له خوا پېژندل شوې دي، واخلئ. | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د (۱۳) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په ۱۰دقیقو |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۱۳ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي، هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه دې راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه اواصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱-د فرهنګ لرغوني برخې له کومو موضوعګانو څخه جوړې شویدي؟<br>۲- معنوي فرهنګ په کومو شیانو پورې اړه لري؟<br>۳- کوم وخت ویلی شو چې اسلامي فرهنګ په ټولنه کې پلی شوی دی؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله اړینې څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- د فرهنګ لرغوني اړخونه له رسم او رواج،دودونو او سنتونو څخه عبارت دي.<br>۲- په معنوي فرهنګ کې ژبې، فکرونه، عقاید، قواعد، دود، رسم او رواج،کیسې، وړتیاوې، سیاسي نظامونه شامل دي.<br>۳- خلک له اسلامي اخلاقو سره عادت شوې وي، له دیني قواعدو او مقرراتو سره اشنا او اسلامي اداب یې خپل کړي وي، په دې معنا چې په ټولنه کې اسلامي فرهنګ پلی شوی وي.<br>٥- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- ټولنه له هغو خلکو څخه جوړه ده چې له یو بل سره متقابله راکړه ورکړه لري او په یوه فرهنګ کې سره شریک وي.
۲- ټولنه له خپل ځانګړي فرهنګ څخه پرته شتون نه لري.
۳- هر ه ټولنه یو فرهنګ لري او له یوه نسل نه بل نسل ته خوله په خوله لیږد مومي. په دې فرهنګي میراث کې دیني بنسټونه، ژبه، ارزښتونه، عقیدې، قوانین، دودونه، پوهې او صنایع شامل دي.
٤- د فرهنګ مخکښني ( لرغوني) اړخونه له رسم او رواج، دودونو او سنتونو څخه عبارت دي. د فرهنګ اوسني اړ خونه، موږ ته نوی فرهنګ او د هغه ځانګړ تیاوې چې نن لیدل کېږي، راپېژني.
٥- مادي فرهنګ عبارت له هغو مادي شیانو څخه دی چې خدای (جَلّ جَلالُه) هغه پیدا کړي او انسانان له هغو څخه ګټه اخلي او له هغو څخه مصنوعات او د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره وسایل جوړوي، لکه: ماشینونه، جامې، مدرسې، کارخانې، ښارونه، کتابونه، فضایي بېړۍ، مجسمې او داسې نور.
٦ په معنوي فرهنګ کې ژبې، فکرونه، عقاید، قواعد، دود، رسم او رواج، کیسې، وړتیاوې او سیاسي نظامونه شامل دي.

### اضافي معلومات

**فرهنګ او ټولنه**

که چېرې ټولنه له ښځې، نارینه او کوچني څخه جوړه یوه نسبتاً ټینګه ډله وبولو چې د خپلو اړتیاوو د لرې کولو په خاطر یو له بله سره مرسته کوي، فرهنګ د ټولنې د ارزښتونو او ګډو لاملونو هغه ټولګه ده چې د هغې د اړتیاوو د پوره کولو په خاطر منځته راځي او له یوه نسل څخه بل نسل ته رسیږي. ټولنه تل د خپلو بدلونونو په اثر د نوو اړتیاوو سره مخامخ کېږي او د دې اړتیاوو د پوره کولو لپاره نوي وسایل منځته راوړي. د نوو وسایلو د رامنځته کیدو او د زړو عواملو د پاینښت په پایله کې تل نوی عوامل د ټولنې پر فرهنګ باندې ورزیاتېږي او لوېې فرهنګي لاسته راوړنې منځته راځي. په واقعیت کې فرهنګ د خلکو د ژوند کولو له ډول یا طریقې څخه عبارت دی، یا په ساده ژبه ( ټولنه یعنې خلك او فرهنګ یعنې د خلکو عمل او معتقدات).
د فرهنګ او ټولنې ترمنځ د بېلوالی په هکله کولای شو ووایو چې د ټولنې او فرهنګ بېلول ناشونی کار دی. ټولنه له فرهنګ څخه پرته د وګړو یوه بې هویته ټولګه ده. دا سمه ده چې ټولنه د پالنې ځای دی، خو ګډ ژوند او ټولنیزې اړیکې له فرهنګ څخه لاسته راځي. له بلې خوا هره ټولنه د فرهنګ له لارې ځان څرګندوي او فرهنګ په ټولنیزه توګه زموږ د اړیکو وسیله او په ځانګړې توګه په ورته شرایطو کې لاره هواروي. فرهنګ ارزښتونو ته هویت وربښي. په بل عبارت: د ارزښتونو اندازه او معیار له فرهنګ څخه پېژندل کېږي. په هره ټولنه کې د فرهنګ او د منلو وړ او یا له منځه تلونکو ارزښتونو ترمنځه تل اړیکې شته، ځکه ارزښتونه هم د فرهنګ د پېژندنې او توپیر کولو لامل ګرځیدلی شي.

# خلورم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| | | |
|---|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
| د لوست سرلیک | **کوچني فرهنګونه** | |
| عمومي موخې | له کوچنيو فرهنګونو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د کوچنيو فرهنګونو پر معنا به پوه شي،<br>• کوچني فرهنګونه به بیان کړا ی شي،<br>• د کوچنيو فرهنګو نو په اړه به مثبت نظر پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | دله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br><br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کور نۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: کوم لامل د بشر د بې ساري بر یالیتوب سبب ګرځېدلی دی. | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br><br>د درسي کتاب د ( ۱۷ ) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ١- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (١٧) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه دې راوباسي.<br>٢- هغه لغتونه اواصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>٣- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>١- کوچنی فرهنګ له لوی فرهنګ سره په کومو موضوعاتو او نظریاتو کې توپیر لري؟<br>٢- د کوچني فرهنګ هویت د څه شي پواسطه ټاکلی شو؟<br>٣- آیا یوه ځانګړنه د خلکو د کوچني فرهنګ د پېژندنې لپاره معیار کیدلای شي؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ١- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>٢- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړې یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>٣- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>١-په هغو برخو کې چې په قواعدو، مادي چارو او د کار کولو پر لارو پورې اړه ولري. دا ډله د هغو په اړه ډول ډول نظرونه لري.<br>٢-د کوچنیو فرهنګو پېژندنه(هویت) د فزیکي، قومي، مذهبي سابقې، جغرافیایي سیمې، عمر، جنسیت، اقتصادي، ټولنیزو او کاري پوړیو( موقعیتونو) پربنسټ ټاکلی شو.<br>٣- یوازې یوه ځانګړتیا د خلکو د کوچنیو فرهنګونو د ټاکلو معیار کیدای نشي.<br>٥- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ١٠دقیقې<br>١٥دقیقې<br>١٠دقیقې<br>٣دقیقې |

# پنځم لوست

## د لوست وخت (یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **کوچني فرهنګونه** | |
| عمومي موخې | د کوچنیو فرهنګونو له ځانګړتیاوو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د کوچنیو فرهنګونو د ځانګړتیاوو په اړه به معلومات پیدا کړي .<br>• د کوچني فرهنګ د ځانګړتیاوو مفهوم به بیان کړا ی شي.<br>• د کوچنیو فرهنګو نو له ځانګړتیاوو سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه:کوچني فرهنګونه په کوم ځای کې لیدلای شو ؟ | دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د کوچنیو فرهنګونوله ګډو ځانګړتیاوو څخه د یوې نوم واخلئ. | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱-زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۱۷-۲۰) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه دې راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱-د ټولو کوچنیو فرهنګونو یوه ګډه ځانګړتیا بیان کړئ.<br>۲-د یوې ټولنې د فرهنګ نه منل او له لاسته راوړنو یې سترګې پټول څه معنا لري؟<br>۳- د کوچنی انحرافي ډلې نوم واخلئ ؟<br>**۵- کورنی د نده**:<br>د ورکړل شوې کورنی دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱-کوچني فرهنګونه د ژبې، ارزښتونو، قواعدو او ګډو پولو او حدودو لرونکي دي.<br>۲-د یوې ټولنې د فرهنګ او په لاسته راوړنو سترګې پټول، په هغه فرهنګ پورې د تړلو وګړو د شخصیت د یوې برخې نه منل دي. هر فرهنګ د خپلو غړو شخصیت څرګندوي.<br>۳- نشه یې توکو د قاچاق باندونه، د غلو او لارې شکوونکو باندونه او داسې نور.<br>٥- زده کوونکي د کورنی دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

**د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه**

۱- کوچنی فرهنگ، په لوی گروپ کې د کوچني گروپ د ژوند لارې ته وايي.

۲- څرنگه چې د اړتياوو ځيني اړخونه يوډول مشخصات اوځانگړتياوې لري، خو دا چې اړتياوې له کومې لارې پوره کيږي د عمل د څرنگوالي په لامل پورې تړاو لري چې په دې ډول فرهنگي تضاد منځته راځي.

۳- د يوې ټولنې د فرهنگ نه منل او د هغو په لاسته راوړنو سترگې پټول په هغه فرهنگ پورې د تړلو وگړو د شخصيت د يوې برخې نه منل دي. هر فرهنگ د خپلو غړو شخصيت څرگندوي..

٤- گډفرهنگ، لکه: د خوړو تيارول او مصرفول، د تفريح د وسايلوجوړول، ښوونه او روزنه، هنر، روغتيا او درملنه، واده کول او له مذهبي اعتقاداتو څخه عبارت دي.

٥- له يوې ټولنې څخه د بلې ټولنې د فرهنگ توپير په کاليو، د خوړو په برابرولو او خوړلو، د ژوند کولو په طريقه په فکرونو او عقايدو کې وي.

**اضافي معلومات**

## کوچني فرهنگونه

کوچني فرهنگونه چې د (فرهنگ ضد) په نوم هم يادېږي، په څرگند ډول د مسلط فرهنگ د دودونو او ارزښتونو په وړاندې په مبارزه کې دي، هغه نا رواگڼي او هڅه کوي په خپله د هغو ځای ونيسي.

په ټولنو کې داسې ډلې شته چې يو له بل څخه بېلې ځانگړتياوې لري، همدا مختلفې ځانگړنې د ټولنې له اصلي فرهنگ ځان جلا کوي.

کوچني فرهنگونه هغو گروپونو ته ويل کيږي چې د ټولنې د مسلط  فرهنگ په يوه برخه کې گډون ولري. خو د خپلو ځانگړونو  دودونو، ارزښتونو، ژبې او مادي فرهنگ لرونکي وي.

د دې تعريف له مخې چې د ضد فرهنگ څخه وشو، کوچنی فرهنگ په څرگند ډول د اصلي او مسلط فرهنگ سره په مبارزه کې دی. د بېلگې په توگه په ۱۹٦۰ کال کې د هيپی په نوم  يو گروپ ځان د لويديځې ټولنې د مسلط فرهنگ په خلاف وليده د ژوند يوه متفاوته لاره يې ځانته  وټاکله چې د مسلط فرهنگ د دودونو او ارزښتونو په برخه کې يې توپير درلود او خپل مخالفت يې په کړو وړو او ظاهري بڼه کې هم څرگند کړ.

## شپږم لوست

### د لوست وخت ( یو درسي ساعت)

| | |
|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان |
| د لوست سرلیک | **فرهنګي اړیکې** |
| عمومي موخې | د فرهنګي اړیکو په اړه د معلوماتو ترلاسه کول. |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د فرهنګي اړیکو پر معنا به پوه شي،<br>• ډله ییزې رسنې به بیان کړای شي،<br>• د ډله ییزو رسنیو په اړه به مثبت نظر پیدا کړي. |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. |

| | | |
|---|---|---|
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه:کوچنۍ فرهنګ څه شی دی؟ | ۵ دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د (۲۱) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۲۱) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه د راوباسي. | ۱۰دقیقې |
| ۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ. | ۲-هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي. | ۱۵دقیقې |
| **۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- دا مهال په نړۍ کې اړیکې څرنګه صورت نیسي؟<br>۲- ټکنالوژي پر کومو موضوعاتو اغېزه اچوي ؟<br>۳- زموږ دولت او خلك د خپل فرهنګ پر وړاندې کومې دندې لري؟ | ٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- اوس مهال زیاتره وخت اړیکې او تماسونه د ډله ییزو اړیکو د وسایلو په مټ سرته رسېږي.<br>۲- د انسانانو په کړو وړو او نظریاتو اغېزه کوي.<br>۳- دولت او وګړي یې دنده لري چې د هېواد د فرهنګ د ساتنې او بډاینې لپاره او همدارنګه د بهرنیو منفي پدیدو او فرهنګي تیریو پر وړاندې ودرېږي او دفاع وکړي. | ۱۰دقیقې |
| **۵- کورنۍ دنده:**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- اړیکې هغه جریان دی چې یو شخص بل شخص یا ډله د یوې موضوع په هکله له خپلو احساساتو څخه خبروي.

۲- که خلك په یو ډول یو له بل سره اړیکې ونه لري، نشي کولی له خپلو ګډو ګټو څخه خبر شي او یا ګډو موخو ته ورسېږي.

۳- د ډله ییزو اړیکو وسایل، د پروګرامونو له خپرولو سره نوې فرهنګونه رامنځته کېږي.

٤- که له نوي ټکنالوژۍ څخه د ټولنې له ملي او اسلامي ارزښتونو سره سمه ګټه واخلو، د فرهنګ په پراختیا په علمي، فني، تخصصي برخو کې پرمختګ او د علمي بنسټونو د ودې په چاروکې ګډون کولای شو.

٥- کمزوري فرهنګونه تل د تیري لاندې راځي.

٦- د بهرنیو سریالونو، لکه: لویدیځ، ایراني، ترکي او هندي سریالونه.

### اضافي معلومات

### فرهنګي تېری

په پخوا وختونو کې به کله چې یو هېواد پر بل هېواد واکمن کیده خپلې موخې او نظریات به یې پر هغه هېواد باندې د جګړې له لارې منل، نو جوته ده چې دې تېري به ځاني زیانونه، د ډېرو پیسو لګښت او نورې ډېرې ستونزې لرلې. له دې کبله پر هېوادونو د تېري او ولکې د اسانو لارو چارو موندلو په تکل کې شول، ترڅو لږ لګښت او ښه پایله ولري. نو د فرهنګي تېري لاره یې خپله کړه. اوس مهال د ډله ییزو رسنیو د وسایلو، لکه: رادیو، تلویزیون، موبایل، کمپیوټر.... له لارې د نورو ټولنو د فرهنګ تخریب او تېرې نوې بڼه پیداکړه او تېري کوونکو هېوادونو له دې لاملونو څخه په ګټه اخېستلو سره پرنورو فرهنګونو باندې د تېري کولو لوی امکانات لاسته راوړل. د فرهنګي تېری په پایله کې د فرهنګي نظامونو اصلي ارزښتونو ته زیان رسېږي او داکار د نظام د له منځه تللو په معنا دی.

# اووم لوست

## د لوست وخت (یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **ټولنیز گروپونه** | |
| عمومي موخې | د ټولنیزو ډلو(گروپونو) په اړه به معلومات ترلاسه کړي. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• ټولنیزې ډلې (گروپ) به وپېژني.<br>• ټولنیزه ډلگی اومرجع گروپ به توپیر کړای شي.<br>• په ټولنیزو ډلو کې به فعال گډون وکړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولگي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولگي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: فرهنگي تېری څه شی دی؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د ( ۲۹ ) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۲۹) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- ډله(ګروپ) څه شی دی؟<br>۲- مرجع ګروپ څه شی دی ؟<br>۳- ټولنپوهان ګروپ څرنګه تعریف کوي ؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په ویشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړې یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- ګروپ له هغو خلکوڅخه جوړ دی چې د ګډو ځانګړتیاوو لرونکي وي او یوله بل سره ګډې ټولنیزې متقابلې اړیکې یا متقابل عمل ولري.<br>۲- مرجع ګروپ هغه ګروپ دی چې فرد د هغه غړی نه وي خو له هغه ګروپ سره د یوشان کیدو یا مشابه کیدو او پیوستون هیله لري.<br>۳-ټولنپوهان ګروپ داسې تعریفوي: ټولنیز ګروپ له هغه واحد څخه عبارت دی چې د دوو یا له زیاتو وګړو څخه چې د هغو ترمنځه نسبتاً تل پاتې متقابل عمل شتون ولري، جوړ دی. د ګډ تفاهم لرونکي وي او د فکر او عاطفې له اړخه هم خپل ځانونه یو بل ته نژدې بولي، د ګډ ارمان او هدف چې همدا ګروپ هغه ته د رسیدو په موخه منځته راغلی دی یو له بل سره مرسته او لاس نیوی کوي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندوونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- ډله له هغو خلکو جوړه ده چې ګډې ځانګړتیاوې لري او یوله بل سره ګډې ټولنیزې متقابلې اړیکې یا متقابل عمل ولري.

۲- ګروپ له هغو خلکو جوړ دی چې د ګډو ځانګړتیاوو لرونکي وي او یوله بل سره ګډې ټولنیزې متقابلې اړیکې یا متقابل عمل ولري. ټولګه یوازې یوه ګډه ځانګړتیا لري او متقابلې اړیکې نه لري.

۳- نه! ځکه چې د هغو ترمنځ اړیکې مؤقتي او ناپایداره دي.

۵- په ګڼه ګوڼه کې اړیکې نا پایداره او مؤقتي وي ګډې ځانګړنې او متقابلې اړیکې شتون نه لري، خو په ټولنیزه ټولګه کې وګړي ګډ ځانګړي خصوصیات لري.

### اضافي معلومات

**ټولنیز ګروپSocialGroup**: انسانان د ژوند له پیل څخه تر مرګه پورې یو ډول نه یو ډول له ګروپونو سره اړیکې لري او زیاتره ژوند یې د یو ګروپ سره په تړاو کې تېرېږي.ګروپونه د ژوند په ټولو پړاوونو کې د انسانانو پر فکرونو، کړو وړو او نظریاتو باندې اغیز لري.

**د ګروپونو ارزښت**

دګروپونو په اړه بحث کول له څو اړخونو څخه د ارزښت وړ دی:

۱- د اصلي ګروپونواو بنسټونو ډلبندي، د ټولنیز جوړښت مطالعه تشکیلوي. له همدې کبله دګروپونو مطالعه د اهمیت وړ ده.

۲- د ټولنپوه لپاره ګروپونه یوازې هغه وخت د ارزښت وړدي چې د ګروپ وګړي په خپلو کې ښکاره او څرګندې اړیکې ولري. دا اړیکې د نورو حالاتو ته د پاملرنې د یوډول حس د را پیدا کیدو لامل ګرځي، نو له دې امله د ټولنپوهنې او ټولنیزې اروا پوهنې له مهمو بحثونو څخه یوبحث د ټولنیزوګروپونو د کړو وړو څېړنه ده.

۳- یو بل لامل چې دګروپونو په هکله د بحث اهمیت څرګندوي، د مختلفو ټولنیزوګروپونو پراختیا، پر ټولنیز ژوند د هغو اغېزه او فعالیت او په مختلفو ټولنیزو نظامونو او ټولنو کې د دې ګروپونو ګډه ده چې له تېرې پېړۍ څخه تر نن پورې د صنعت او ټکنالوژۍ په برخه کې رامنځته شویدي. د ټولنیزو څېړونکو او ټولپنوهانو پاملرنه یې له یوې خوا او د سیاستمدارانو او حکومتي کارکوونکو پاملرنه یې له بلې خوا د ټولنیزوګروپونو جوړښت، پایښت او بدلون ته را اړولې ده.

٤- داسې ویل شوي دي چې ټولنه د مختلفوګروپونو یوه ټولګه ده، هر یو یې یوه ځانګړې دنده پر غاړه لري. له دې امله ځینې ټولنپوهان داسې عقیده لري چې هر څومره په ګروپ کې اړیکې ډېرې او نژدې وي د هغوی همغږي کول ستونزمن او د ټولنیز تاوتریخوالی د رامنځته کیدو ډېر امکان شتون لري. همدارنګه د ټولنیزوګروپونو په اړه بحث له دې کبله هم د اهمیت وړ دی چې سره ورته اصطلاحاتو،لکه: ټولګه، جماعت، عامه، فرقه، پرګنې، جرګه او داسې نورو مفهومونه موږ ته څرګندوي.

# اتم لوست

## د لوست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | د ډلې(گروپ) جوړښت | |
| عمومي موخې | د ټولنیزو گروپونو د جوړښت په اړه بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د ډلې د جوړښت پر څرنگوالي باندې به پوه شي.<br>• په ډله کې د وگړو دگډون لاملونه به بیان کړای شي.<br>• له ټولنیزو ډلو سره به یې مینه پیدا شي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولگي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولگي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او د تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د مرجع گروپ څه شی دی؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د ( ۳۳) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۳۳) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- آیا د څوکسانو په راټولیدو سره ټولنیزه ډله جوړیږي؟<br>۲- د خلکو ترمنځ ملګرتیا او د اړیکو ټینګولو او د ملګري د پیداکولو لپاره هڅه، د څه لپاره ده؟<br>۳- کورنۍ څرنګه خپل پایښت ساتلی شي.<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله اړینې څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱-د څوکسانو په را ټولیدو سره ټولنیزه ډله نشي جوړیدلی.<br>۲- ځیني فیلسوفان د دې پوښتنې په ځواب کې وایي چې انسان په طبیعي توګه ټولنیز موجود دی او دا هڅې د انسان له طبیعي غوښتنې څخه چې غواړي ټولنیز ژوند جوړکړي او خپلې اړتیاوې پوره کړي سرچینه اخلي، دا هیلې او اړتیاوې له نورو سره د هغه د ټولنیزو اړیکو د ټینګښت لامل کیږي چې د ټولني د پایښت او ثبات لامل ګرځي.<br>۳- کورنۍد واده کولو اوزیږد له لارې خپله بقاساتي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- کورنۍ د یوه بنسټیز ټولنیز واحد په توګه د واده او تولد له لارې خپل پایښت ساتي او د هغو غړیتوب د ښو اړیکو په بنیاد منځته راځي، د ملګرو په ډله کې غړیتوب د احساس په بنه رامنځته کېږي.

۲- وګړي په ډلو کې د لاندې لاملونو په خاطر شاملېږي:

۱- وګړي د رواني او ټولنیزو اړتیاوو، لکه: په ګروپ پورې تړاو، دګروپ د پاملرنې وړ ګرځېدل او یا له هغه سره دګروپ د غړو په مینه او محبت چلن کولو له امله ګروپ ته شاملېږي.

۲- په ډله کې وګړي له رواني او ټولنیز امنیت څخه برخمن وي.

۳- انسانان په ډلو کې د زیات فعالیت او هڅې په موخه ډېره لیوالتیا ښکاره کوي.

۳- هرڅومره چې په ګروپ کې ځانګړتیاوې او ورته والی ډېروي، د وګړو اړیکې نژدې او دوامدره وي او له وګړو څخه بیا یو ګروپ جوړوي.

٤- تکمیلي پوښتنه:

پ: کورنۍ.............. لومړنې........................ تشکیلوي.

ج: کورنۍ تر تولو لومړنی ټولنیز ګروپ تشکیلوي.

**اضافي معلومات**

### د ډلې جوړیدل

د یو ټولنیز ګروپ په جوړښت کې اغېزمن لامل د وګړو ګډې او محسوسې اړتیاوې دي. دا په دې معنا چې فزیولوژیکي اقتصادي او فرهنګي اړتیاوې دي چې د ټولنیزو ګروپونو د جوړښت لامل ګرځي. په بل عبارت فطري او ټولنیزې اړتیاوې، انسان د ټولنیز او ډله ییز ژوند خواته بیایي. له دې کبله د اړتیا لامل د ټولنیزو ګروپونو په جوړیدو کې له یو ځانګړي ارزښت څخه برخمن دی. همدا لامل دګروپونو په بدلون او ودې کې اغېزمن دی.

### په ډله کې د غړیتوب ترلاسه کول

هر ګروپ د دې لپاره چې خپل ژوند ته پایښت ورکړي، باید وکولای شي نوي غړي په غړیتوب ومني. په اصل کې وګړي له زیږېدو وروسته د کورنۍ او خپلوی، د ډلې د غړو په توګه منل کېږي. ولې د واده په کولو سره د خپلوۍ د لوی ګروپ غړیتوب حاصلوي.ټول ټولنیز ګروپونه نوي غړي په دې شرط په غړیتوب مني چې د غړیتوب لازم شرایط ولري. یو دوستانه ګروپ کیدای شي یو غړی د ډلې د پخوانیو غړو سره د پوهاوي له کبله ومني. خو ځینې ګروپونه یو نوی غړی په خپله خوښه او انتخاب یا د دعوت له لارې مني. په ځینو ګروپونو کې د غړیتوب داوطلب باید خپل صلاحیت دګروپ د رسم او دود سره سم دکتبي ازموینې مطابق په اثبات ورسوي.

# نهم لوست

## د لو ست وخت (یو درسي ساعت)

| | | |
|---|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
| د لوست سرلیک | د ډلې مشرتوب | |
| عمومي موخې | د ډلې د مشرتوب په اړه معلومات ترلاسه کول. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د مشر توب پر مفهوم به وپوهېږي.<br>• د مشر توب ډلبندي به بیان کړای شي.<br>• له سم او معقول مشرتوب سره به یې مینه پیدا شي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br><br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ دندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: ولې وګړي په ګروپ کې شاملېږي؟ | ۵ دقیقې |
| | **هڅونه**<br><br>د درسي کتاب د (۳۷) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟<br>. | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۳۷) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه اواصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له ځو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له ځو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- د مشر کره وړه څه شی دي ؟<br>۲-د ډلې پر وړاندې د مشر دنده څه شی ده؟<br>۳- مشر څنګه ټاکل کېږي ؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله اړینې څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته ولولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړې یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- د یوه مشر دنده ډله ییزو موخوته د رسیدو لپاره د ډلې د غړو په کړو وړو او اعمالو کې د همغږۍ راوستل دي.<br>۲- د یوې ورزشي ډلې مشر یا مرستندوی د یوې لوبې د اداري ترڅنګه د هغه کیفیت هم لوړ وي. هغه د هر نفر مسؤلیتونه ور په ګوته کوي او هڅه کوي چې د لوبې نیمګړتیاوي له منځه یوسي.<br>۳- د خلکو له خوا د مشر ټاکنه(حزبي یا پرګنیز مشر)، یا خپله د یوه مشر له خوا د راتلونکي مشرټاکل.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

# لسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **دډلي مشرتوب** | |
| عمومي موخې | د ډلې د مشر د ځانګړتیاوو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د ډلې د مشرۍ پر صفاتو به پوه شي.<br>• د مشر توب صفتونه به بیان کړای شي.<br>• د مشر ښه صفات به د خپل ژوند سرلیک وګرځوي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه:مشر توب څه ته وایي؟ | ۵دقیقې |
| | **هځونه**<br>- لاربښود او مشر باید دکومو صفاتو خاوند وي؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده‌کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۳۷-۴۰) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح‌ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح‌ګانې چې زده‌کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده‌کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده‌کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده‌کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- مشر ولې باید د تدبیر څښتن وي؟<br>۲- که چېرته مشر زړه ور نه وي، څه به پېښ شي ؟<br>۳- د پرګنیز مشرتوب، اغیزمنتیا په څه شي کې ده؟<br>۵- کورنۍ د نده:<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح‌ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح‌ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- د مهمو چارو سرته رسولو لپاره تدبیر، هوډ نیونه او وړاندوینه ډېره اړینه ده.<br>۲- مشر باید زړور وي. هغه لارښود او مشر چې زړور نه وي نشي کولای چې په توپانونو کې خپل ولس په خوځښت راولي، قوت ورکړي او د پېښو او حوادثومخنیوی وکړي.<br>۳- د ټولنې او ډلې د دوام او سمون د ژمنتیا په اړه د مطلقې مشرۍ په پرتله له ډېر ګټور توب او مؤثریت څخه برخمن دي. نوموړي مشران د ډله ییز تصمیم نیولو په برخه کې د ګروپ د غړو ګډون ته ډېر ارزښت ورکوي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- هغه سړی چې په ډله کې د هوډ نیولو توان او د پرګنو د باور وړ وي، مشر یا لارښود ورته وایي. هغه سړی چې په طبیعي ډول او د وړتیا پر بنسټ ډله اداره کوي، د ډلې اړتیاوې پوره کوي هغوی ته ګټور تمام شي او هغوی خپلو موخوته رسوي، د ډلې مشردی.

۲ - مذهبي مشران، د سیاسي ګوندونو مشران، د هېوادونو رهبران او نور.

۳- د یوې ډلې مشر د ټاکنو له لارې او یا هم انتصابي ټاکل کېږي.

ټاکنه کېدای شي د یو سازمان په واسطه او یا خپله د رهبر له خوا وشي.

٤- مشر باید عالم وی، مشر باید فزیکي نقص ونه لري، مشر باید عادل وي، مشر باید پرهیزګار (باتقوا) وي.

- مشر باید سیاسي او ټولنیز دید ولري.

.٥- پرګنیزه مشري ۱- مطلقه مشري۲- خپل سری مشرتوب ؟

### اضافي معلومات

**وسیلوي رهبري**: د ډلې په وسیلوي مشرتوب کې هغو دستورالعملونو ته اشاره ده چې د دندې او چارو په سرته رسولو پرې ټینګار کېږي. وسیلوي رهبران دګروپ له غړو سره معمولاً رسمي او ثانوي اړیکې لري. په داسې حالت کې رهبر دستور ورکوي او دګروپ غړی د خپلې هڅې په بدل کې انعام اخلي او یا سزا وېني. د اروپا په دودیزو کورنیو او یا د نړۍ په ډېرو کورنیو کې د جنسیت او رهبرۍ په منځ کې هم اړیکې موجودې دي، په دې کورنیو کې وسیلوي مشرتوب دکورنۍ نارینه ته ورکول کېږي، ترڅو هغوی دکورنۍ د پلار او خاوند په توګه د عاید د لاسته راوړلو عمده مسؤولیت، هوډ نیون او دکوچنیانو تنظیمول پر غاړه واخلي.

**عاطفي مشري**

د وسیلوی مشرتوب پرخلاف، عاطفي مشري په ډله ییزه سلامتۍ او خوشبختۍ ټینګار کوي.د عاطفي مشرتابه د دندې پېژندنې او موخو ته د رسیدو رول پرځای زیاتره د ډلې د غړو روحیې ته پاملرنه کوي او هڅه کوي چې د ډلې دننه کړکیچونه او تضادونه کم کړي. عاطفي مشران د ډلې له غړو سره زیاتره شخصي او نژادي اړیکې لري. هغوی د ډلې د غړو د ستونزو په وړاندې خوا خوږي ښکاره کوي، په بحراني حالاتو کې د ډلې یووالی او پیوستون ساتي.

## يوولسم لوست

## د لو ست وخت ( يو درسي ساعت)

<table>
<tr><th>د سر ليکونو مطلبونه</th><th colspan="2">د مطلبونو بيان</th></tr>
<tr><td>د لوست سرليک</td><td colspan="2">ټولنيز بنسټ (نهاد) (۱)</td></tr>
<tr><td>عمومي موخې</td><td colspan="2">له ټولنيز بنسټ سره بلدتيا.</td></tr>
<tr><td>(پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې)</td><td colspan="2">زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>● ټولنيز بنسټ به وپېژني.<br>● ټولنيز بنسټ به بيان کړای شي.<br>● له ټولنيز بنسټ سره به يې مينه پيدا شي.</td></tr>
<tr><td>د ښوونې لارې چارې</td><td colspan="2">ډله ييز فعاليتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر.</td></tr>
<tr><td>د زده کړې د اړتيا وړ وسايل</td><td colspan="2">کتاب، تخته، تباشير، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه.</td></tr>
<tr><td>د ارزونې لارې چارې</td><td colspan="2">شفاهي، تحريري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده يا ليدنه.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعاليتونه</td><td>لومړني فعاليتونه<br>سلام اچول او روغبړ کول، د ميز او څوکيو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او د تېر لوست څخه يوه پوښتنه کول، لکه: بې قيدو بنده مشر توب څه ته وايي؟</td><td>۵دقيقې</td></tr>
<tr><td>هڅونه<br>د درسي کتاب د (۴۳) مخ په انځورونو کې څه شی وينئ؟</td><td>۲<br>دقيقې</td></tr>
</table>

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ١- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (٤٣ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>٢- هغه لغتونه او اصطلاح گانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>٣- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولگیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکوته لوست په ساده توگه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>١-د Institution کلمه د کومې ژبې له ریښې څخه اخېستل شوی او څه معنا لري؟<br>٢- ټولنیز بنسټ څه شی دی؟<br>٣- کورنۍ او واده کول څرنگه نظام دی؟<br>**۵- کورنۍ د نده**:<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرگندونې وکړئ. | ١- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>٢- هغه اصطلاح گانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>٣- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>١- د یوناني ژبې له ریښې څخه اخېستل شوی ده او د بنسټ په معنا کارول شوې ده.<br>٢- د یوې اړتیا د ترسره کولو لپاره له پرله پسې اړیکو څخه عبارت ده.<br>٣- له هغه بنسټ څخه چې د بشر د ژوندانه پایښت ورپورې تړلی دی. د کورنیو اړیکو د تنظیمولو او د واده کولو چارې سرته رسوي. د ماشومانو د زده کړې او روزنې دنده چې د بشر د ژوندانه د پایښت لامل گرځي، سرته رسوي.<br>٥- زده کوونکي د کورنۍ دندې په اړه د ښوونکي څرگندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمگړتیاوې پوره کوي. | ١٠دقیقې<br>١٥دقیقې<br>١٠دقیقې<br>٣دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- دا چې د مخه مو ولوستل، که چېرې ټولنه د خپلې بقا او پایښت غوښتونکې وي، باید چې بنسټیزې اړتیاوې یې ورپوره شي.

۲- اړتیاوې عبارت دي له: ماشومان باید تر څارنې لاندې ونیول شي، ترڅو وده وکړي. فرهنګي اطلاعات باید له یوه نسل څخه بل نسل ته ولیږدول شي. د ارزښتونو او ټولنیزوقواعدو باید درناوی وشي چې ټولنیز نظم ټینګښت پیدا کړي.

۳- الف: کورنۍ ب: ښوونځی، ج: بانک د: د دوستانو ناسته.

٤- د ټولنیز بنسټ پرنسبت ترسره کېږي.

٥- هره ټولنه د دې لپاره چې خپل ژوندانه ته دوام ورکړي، باید خپلې مختلفې اړتیاوې پوره کړي. د تاریخ په اوږدوکې د دې اړتیاوو د پوره کولو لپاره ځینې اړیکې را منځته شوي دي، پایښت یې کړی دی چې دغو اړیکو ته بنسټ ویل کېږي.

### اضافي معلومات

**ټولنیزبنسټونه**

د ټولنپوهانو په اند بنسټونه د ټولنې اسکلیټ او اصلي بنیادګڼل کېږي له همدې کبله د ټولنپوهانو د پاملرنې وړ ګرځېدلي دي.

**د ټولنیزبنسټ مفهوم**

بنسټInstitution د فرانسوي او انګلیسي کلمې ژباړه ده او معنا یې منځته راوړل او په ځینو وختونو کې په (موسسې) او سازمان ژباړل شوې ده. ټولنیز بنسټ د انسانانو اړتیاوې پوره کوي او د ټولنې د پایښت لپاره اړین دی.

د ټولنیزبنسټ اصطلاح هغو مؤسساتو ته وېل کېږي چې د هغوی په واسطه ټولنیز کنټرول را منځته کېږي.

**د بنسټ عامه معنا**

د بنسټ عامه معنا هغو شیانو ته وېل کېږي چې ټولنه ورته اړتیا لري او په ټولیزه توګه د ټولنې له خوا جوړه او بنیاد یې ایښودل شوی وي. په دې معنا ټولې مؤسسې، سازمانونه، ټولنیز مقررات چې د ټولنې د وګړو د جسماني او نفساني اړتیاوو د پوره کولو لپاره منځته راځي، بنسټ نومېږي.

**د بنسټ ځانګړې معنا**

بنسټ په ځانګړې معنا هغه ( اساسي او اصلي بنسټونه) دي چې ټولنې هغه ایجاد کړي دي. دا بنسټونه د انسانانو د اړتیاوو او تمایلاتو د پوره کولو لپاره منځته راغلي دي چې په ټولو ټولنو کې شتون لري چې هغه د روزنې او ښوونې بنسټ، د کورنۍ بنسټ، د دین بنسټ، د حکومت یا سیاست بنسټ او د اقتصاد بنسټ څخه عبارت دي.

# دولسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | ټولنیز بنسټ (۲) | |
| عمومي موخې | له لومړنیو بنسټونو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د ښوونې او روزنې او اقتصاد پر بنسټونو باندې پوه شي.<br>• لومړني، دویم او دریمه درجه بنسټونه به سره بېل کړای شي.<br>• د ښوونې او روزنې اقتصاد،د دیني او سیاسي بنسټونو په هکله به مثبت نظر پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ د ندې کتل او د تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: ټو لنیز بنسټ څه شي دی؟ | ٥دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د (٤٧) مخ په انځورونو کې څه شي وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۴۷-۵۲) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح گانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولگیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکوته لوست په ساده توگه تشریح کړئ.<br>۴- د نوي لوست ارزونه<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- ښوونه او روزنه د دې لپاره چې خپلې دندې په ښه توگه سرته ورسوي کومې موضوعگانې باید په پام کې ونیسي.<br>۲- د ښوونې او روزنې بنسټ له کومو برخو څخه جوړ شوی دی؟<br>۳- که چېرې خلک اصول او قواعد پلي نه کړي، په ټولنه کې څه پېښېږي؟<br>**۵- کورنۍ دنده:**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرگندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح گانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>۴- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- باید پلانونه، اصول، ضوابط او ځانگړي مقررات په پام کې ونیسي.<br>۲- وړکتونونه، ښوونځي، پوهنتونونه، د لوپانو د زده کړې مدرسې، داخل خدمت کورسونه، خصوصي پوهنتونونه، میتودونه، د تدریس بېلگې د زده کړې پلانونه، فني او حرفه یي زده کړې پکې شاملې دي.<br>۳- که چېرې خلک د یو بل حقوق په پام کې و نه نیسي، په ټولنه کې د بې نظمۍ او گډوډۍ لامل گرځي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرگندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمگړتیاوې پوره کوي.<br>. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

| د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه |
| --- |
| ۱- کورنی د پنځه گونو بنسټونو له جملې څخه ده. لومړی بنسټ بلل کېږي.<br>۲- د غړو په وړاندې د کورنۍ مسؤولیتونه عبارت دي له:<br>• د مثل تولید او د ژوندانه پایښت.<br>۳- د انسانانو خوراکي او مصرفي اړتیاوې پوره کوي.<br>٤- د ښوونې او روزنې پر بنسټ پلي کېږي.<br>٥- سیاسي بنسټ یې ترسره کوي.<br>٦- دین د انسانانو د ټولو مادي او معنوي اړتیاوو د پوره کولو لپاره نازل شوی دی او د اړتیاوو د پوره کولو ټولې لارې چارې یې انسانانو ته ورښودلي دي. |

**اضافي معلومات**

**د بنسټونو ډلبندي**

ټولنیز بنسټونه په اصلي او فرعي بنسټونو ویشل کېږي. اصلي بنسټونه هغه دي چې د ټولنې ټول وگړي په هغه کې گډون لري او شتون یې د ټولنې د دوام او پایښت لپاره اړین دی. د فردي او ټولنیز خیر لپاره ډېر مهم دي چې په لاندې ډول دي:

کورنی ، ښوونه او روزنه، سیاسي، اقتصادي او دیني بنسټونه.

فرعي بنسټونه دا صفتونه نه لري. دا بنسټونه بدلون کوونکي دي چې د اصلي بنسټونو په منځ کې ځای لري.

**د کورنۍ بنسټ**: کورنی داسې یو نظام دی چې د نارینه او ښځې ترمنځ د گډ ژوند جوړښت ته سمون ورکوي، په داسې ډول چې د ښځې او نارینه، ماشومانو یا له ماشومانو پرته د کورنۍ یو واحد جوړوي.

**د ښوونې او روزنې بنسټ**: د ښوونې او روزنې بنسټ اساساً د ټولنیز کېدو یو منظم بهیر دی چې په غیر رسمي توگه د کورنۍ په غېږ او په عمومي فرهنگي چاپېریال کې لیدل کېږي. په رسمي توگه ( پرښوونځیو او مدرسو) کې ترسره کېږي. د دې اصلي بنسټ په چوکاټ کې فرعي بنسټ، لکه: د ازموینې بنسټ، د زده کړې درجه او تخصصي مختلفې څانگې او تشویقي بنسټونه ځای لري.

**اقتصادي بنسټونه**: اقتصادي بنسټ د هغو کړو وړو او چلندونو چوکاټ او بڼه ده چې د هغه له لارې ټولنه خپلې مادي او خدماتي اړتیاوې پوره کوي. اقتصادي بنسټ د تولید او وېش، مبادلې، دکالیو لگښت او د خدمتونو څخه جوړېږي. هغه فرعي بنسټونه چې د اقتصاد له بنسټ سره تړاو لري، په لاندې ډول دي:

– بانک، بیمه، لیږد رالیږد، بازار پیدا کول، تبلیغات او د تجارتي شرکتونو ډولونه.

**سیاسي بنسټ**: سیاسي بنسټ یو له لرغونو بنسټونو څخه دی چې په ټولنه کې د نظم او سمون راوستلو دنده لري. دولت د دې بنسټ ښکارندوی گڼل کېږي چې د چارو په اداره کولو بوخت دی.

**دیني بنسټ**: دیني بنسټ له الله (جَلّ جَلالُه) سره د انسان د رابطې ټولنیزې او بنیادي اړتیاوې پوره کوي. دین یو نړیوال بنسټ دی، د هغه پر مختللې بڼه په واحد خدای د ایمان لرلو په بنسټ ولاړ دین دی.

## دیارلسم لوست

### د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | ټولنیز بنسټ څه شی دی؟ (۳) | |
| عمومي موخې | د ټولنیز بنسټ له کړو وړو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د ټولنیز بنسټ پر کړو وړو باندې به پوه شي.<br>• د ټولنیز بنسټ کړه وړه به یو له بله سره توپیر کړای شي.<br>• د ټولنیز بنسټ له ښو او ګټورو کارونو سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ د **ندې** کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: اقتصادي بنسټ په ټولنه کې کوم رول لوبوي؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د (۵۳) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۵۳-۵٦ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړي وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱-د پنځو ټولنیزو اصلي بنسټونو نومونه واخلئ.<br>۲-هر ټولنیزبنسټ کومې چارې سرته رسوي؟<br>۳- د کورنۍ بنسټ دوه، کره وړه بیان کړئ.<br>**۵- کورنۍ د نده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲-هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱-عبارت دي له: کورنۍ، ښوونې او روزنې، اقتصادي، سیاسي او مذهبي بنسټونو څخه.<br>۲-هر ټولنیز بنسټ ځانګړې کړه لري چې د هغو بنسټ په ټینګښت او پایښت باندې اغېز کوي.<br>۳- د کورنۍ د بنسټ دوه، کره وړه عبارت دي له:<br>• د ټولنیز لومړنۍ بنسټ په توګه د کورنۍ ځانګړې جوړښت او تنظیم.<br>• د اولادونو، کمزورو وګړو او د مشرانو څارل او ساتل.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي.<br>. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

# څوارلسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | ټولنیزبنسټ څه شی دی؟(۳) | |
| عمومي موخې | د سیاسي بنسټونو د څانګړو کړو وړو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د سیاسي، تعلیمي او مذهبي بنسټونو ځانګړي کړه وړه به وپېژني.<br>• د سیاسي او اقتصادي بنسټونو ځانګړي کړه وړه به بیان کړای شي.<br>• د سیاسي او اقتصادي بنسټونو له ځانګړو کړو وړو سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د اقتصادي بنسټ د کړو وړو څخه د یوه نوم واخلئ. | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>آیا پوهېږئ سیاسي بنسټونه کومې دندې او کړه وړه لري؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۵۳-۵۶) مخ پرانیزي، د دې لپاره چې، د قواعدو او مقرراتو بنسټیز کېدل څه معنا لري، خبرې او بحث وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- د سیاسي بنسټ یوه ځانګړې کړنه بیان کړئ.<br>۲- د اقتصادي نظام یوه ځانګړنه بیان کړئ.<br>۳- د مذهبي بنسټ یوه ځانګړنه بیان کړئ.<br>**۵- کورنۍ دنده:**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲-هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- د سیاسي بنسټ درې ځانګړې کړه وړه عبارت دي له:<br>• د جوړو شوو قوانینو ترسره کول.<br>• د ټولنې د غړو ترمنځ د شتو بې اتفاقیو له منځه وړل.<br>۲-د ټولنې د اړتیا وړ شیانو او خدمتونو تولیدول.<br>۳- د وګړو د فکري او اخلاقي پېژندنې په باره کې مرسته کول.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- د ماشومانو ټولنيز کول د کورنۍ د بنسټ دنده ده.

۲- د علمي څېړنو په واسطه په ټولنه کې د پرمختګ او بدلون رامنځته کول د تعليمي بنسټ دنده ده.

۳- الف: د کورنۍ بنسټ

ب: د دين بنسټ

ج: سياسي بنسټ

د: هېڅ يو.

### اضافي معلومات

### د بنسټونو د پيدا کېدو لاملونه

ډېر ټولنپوهان په دې عقيده دي چې بنسټونه د ټولنې د خلکو د اړتياوو له امله منځته راځي او دوام پيدا کوي. دا اړتيا په هر کار او هره ټولنه کې توپير لري. ښکاره ده ترڅو اړتيا نه وي، بنسټ منځته نه راځي او دوام نه کوي. د بېلګې په توګه: کورنۍ هغه بنسټ دی چې د بشر د ژوند پايښت په هغه پورې تړاو لري، په داسې حال کې چې تياتر، سينما، پارک، يا تفريحي بڼ د انسان تفريح او سيل ته د اړتيا لپاره منځته راغلي دي.

هغه بنسټونه چې له دې سرچينې څخه منځته راغلي دي په لاندې ډول دي:

- اقتصادي او سياسي بنسټ چې د لومړنيو موادو، خوراکي موادو، پوښاک، استوګنځی، مالکيت، د ټولنيزو پوړونو ډلبندي او د قوانينو او مقرراتو وضع کول دي.
- د کورنۍ او واده بنسټ هم د ښځې او مېړه، کوژدې، طلاق د ځوانانو په ښوونه او د بوډاګانو په ساتلو کې څرګندېږي.
- فکري، هنري او تفريحي بنسټونه چې د کار، شعر، هنر، فلسفې، علم او نورو ټولنيزو فعاليتونو، لکه: سپورتي سيالۍ چې د تفريح لپاره سرته رسېږي د انسان د دې برخې اړتياوې پوره کوي.
- ديني بنسټ د ټولنې مادي ، معنوي، روحي اړتياوې او د ژوند ټولو مسايلو او ستونزو ته ځواب ورکوي او پوره کوي يې.

# پنځلسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| | | |
|---|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
| عمومي موخې | **د بنسټونو متقابلې اړیکې** | |
| لو یه موخه | د بنسټونو د متقابلو اړیکو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د متقابلو بنسټونو همغږیزې اړیکې به وپېژني.<br>• د بنسټونو متقابلې اړیکې به بیان کړای شي.<br>• د بنسټونو د متقابلو اړیکو سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او ځوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنی د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه:د دیني بنسټ دوه کړه وړه بیان کړئ. | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د (۵۷) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| وخت په دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۱۰دقیقې | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي. | ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۵۷) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي. |
| ۱۵دقیقې | ۲- هغه اصطلاح گانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي. ۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي. | ۲- هغه لغتونه او اصطلاح گانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ. ۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولگیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توگه تشریح کړئ. |
| ۱۰دقیقې | ٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه: ۱- هغه مهال چې ټول بنسټونه په یووالي او یوه اواز سره عمل و کړي. ۲- په یوه بنسټ کې بدلون پر نورو بنسټونو کې د بدلون سبب گرځي. ۳- په عمومي توگه ټول بنسټونه ټولنیزې اړتیاوې په پام کې نیسي. | **۴- د نوي لوست ارزونه** له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ. ۱-یوه ټولنه کوم وخت کولای شي چې خپلو موخو ته ورسېږي؟ ۲- په یوه بنسټ کې بدلون راتلل د څه شي سبب گرځي؟ ۳- په عمومي توگه ټول بنسټونه کومې اړتیاوې په پام کې نیسي؟ |
| ۳دقیقې | ۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرگندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمگړتیاوې پوره کوي. | **۵- کورنۍ دنده:** د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرگندونې وکړئ. |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- یو ټولنیز بنسټ نشي کولای چې له نورو ټولنیزو بنسټونو سره له اړیکو پرته او په یوازې توګه د ټولنې بېلابېلې اړتیاوې پوره کړي.

۲ - اقتصادي رکود نور ټولنیز بنسټونه هم زیانمنوي.

۳- که په یوه بنسټ کې بدلون رامنځته شي، په ترتیب سره همداسې بدلونونه په نورو بنسټونو کې هم راتلای شي.

### اضافي معلومات

### د بنسټونو په منځ کې اړیکې

د دې لپاره چې ټولنه اغېزمن کړه وړه ولري. باید اساسي او بنیادي بنسټونه یې په خپلو کې رغنده او ټینګې اړیکې ولري. د کورنی، حکومتی، مذهبی، اقتصادی او د ښوونې د بنسټونو په منځ کې باید مناسب توازن موجود وي. له کومه ځایه چې مختلف کړه وړه لري. کیدای شي مختلف بنسټونه ورته اړتیاوې سر ته ورسوي، خو په هره وسیله ضروري ده چې د یو بنسټ د کړو وړو په ساحه کې نوموړی بنسټ په نورو بنسټونو برلاسی وي. د بېلګې په توګه: د تنکیو ځوانانو په ټولنیز کیدوکې د کورنی بنسټ او د ښـوونې او روزنې بنسټ سره شریک دي. ښوونځي د ښوونې د کړو وړو اصلي مسؤولیت پر غاړه لري، خو په یوه کرنیزه او کلیوالي ټولنه کې کورنی په ښوونه او زده کړه کې ډېر رول لري، ځکه داسې تمه کېږي چې یو وخت کیدای شي کوچنیان د کورنی د بنې او کرنې مسؤولیت پر غاړه واخلي.

### د بنسټونو متقابلې اړیکې

هېڅ بنسټ نشي کولای په یوازې ډول خپل ژوند ته دوام ورکړي. هر بنسټ په مختلفو درجو پر نورو بنسټونو اغېزکوي او په مقابل کې یې له هغو ټولو نه اغېزمن کېږي د بېلګې په توګه: که د دین بنسټ ته پام وکړو د ښځې او نارینه په واده کولو سره د کورنی بنسټ ته مشروعیت ورکوي او له دې لارې د مشروعو اولادونو په ټولنیز دریځ اغېزه اچوي د روزنیزې تګلارې او رسمي او غیر رسمي ښوونه او روزنه کې د دیني عقیدو په داخلولو سره د ښوونې او روزنې په بنسټ باندې اغېزه رامنځته کېږي. په مقابل کې له نوموړي بنسټ څخه دیني تحصیل کړي ، مومن او متعهد متخصصان ټولنې ته وړاندې کېږي.

د سود د حراموالي د حلال او حرام کسب او کار د حدودو ټاکل پر اقتصادي بنسټ اغېزه اچوي او په مقابل کې له هغه څخه حلال او مشروع وجوهات لاسته راوړي.

# شپاړسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | پراختیا څه ته وايي؟ | |
| عمومي موخې | له پراختیا سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>● د پراختیا په مفهوم به پوه شي.<br>● پراختیا به بیان کړای شي.<br>● د پراختیا په هکله به ښه فکر پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: آیا یوازې د اقتصاد بنسټ کولی شي ټولنه ټاکلې موخې ته ورسوي؟. | ٥دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د ( ٦٣ ) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب ( ٦٣ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي. | ۱۰دقیقې |
| ۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ. | ۲-هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي. | |
| ۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ. | ۳-هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي. | ۱۵دقیقې |
| **۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- وده څه شی ده؟<br>۲- وده پر کومو وسایلو باندې اندازه کېږي؟<br>۳- صنعتي کیدل څه ته وایي؟ | ٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- وده یو اړخیز مفهوم لري چې مطلب ورڅخه په یو شي کې د اندازې ډېریدل دي.<br>۲- د سړي سر د عایدو له نښو څخه اندازه کېږي.<br>۳- د ډېروالي په حال کې د دوامدارې ګټې په معنا ده چې د یوه منظم سازمان او تخنیکي (کشفیاتو) څخه دګټې اخستنې د کار په زور لاس ته راځي. | ۱۰دقیقې |
| **۵- کورنۍ دنده**:<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۳دقیقې |

# اووه لسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **پراختیا څه شی دی؟** | |
| عمومي موخې | د پراختیا د ځانګړتیاوو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د پراختیا ځانګړتیاوې به وپېژني.<br>• د پراختیا ځانګړتیاوې به توپیر کړای شي.<br>• د پراختیا د ځانګړتیاوو سره به مثبت فکر پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br><br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: له یوې وروسته پاتې ټولنې څخه د یوې مطلوبې ټولنې په لور د پرمختګ لپاره کومو ځانګړتیاو ته اړتیا ده؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br><br>آیا پوهېږئ پراختیا کومې ځانګړتیاوې لري؟ | ۲ دقیقه |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ١- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (٦٥-٧٨) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>٢- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ. | ١- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>٢- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي. | ١٠دقیقې |
| ٣- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ. | ٣- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي. | ١٥دقیقې |
| **۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>١- په یوه ساده تحلیل سره پراختیا څه ته ویل کېږي؟<br>٢- د پراختیا لومړنۍ موخه د بېلګې سره بیان کړي.<br>٣- پراختیا کوم وخت هر اړخیزه او دوامداره ده؟ | ٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>١- پراختیا لومړۍ اړتیاوې چې انساني ژوند ورته اړتیا لري، چمتو کوي چې له خوړو، جامو او کور څخه عبارت دي.<br>٢- د ژوند د کچې لوړوالی او له مادي نعمتونو څخه د انسانانو ګټه اخېستل.<br>٣- د ملتونو او وګړو د انتخاب او غوښتنو د لمنې پراخیدل، د وګړو د مدني حقونو لوړتیا د فکر او بیان ازادي، د قانون پر وړاندې برابري او داسې نور. | ١٠دقیقې |
| **٥- کورنۍ د نده**:<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ٥- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ٣دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- پراختیا د زیاترو هېوادونو لپاره یوه ارماني موخه ده. ټول وروسته پاتې هېوادونه دې ته لېواله دي چې په خپل مادي، انساني او معنوي ځواك او ظرفیت کې زیاتوالی راولي، ترڅو د انساني، اقتصادي، سیاسي، ټولنیزو،فرهنګي او اداري پیاوړتیاوو له مخې یو ځواکمن دولت شي.

۲- پراختیا یوازې اقتصادي بهیرنه دي، بلکې د پرمختګ یو اړخیز مفهوم لري او په ټولنه کې له هغې څخه موخه د شتمنۍ د کمیت ( اندازه) ډېروالی دی.

۳-۱- لاربښوونکي خپل سري او فاسد نه وي، ځکه چې د زورواکۍ (خپلمخۍ) له مخې خوځښت نه رامنځته کېږي. ۲ - انسانان به پر خپل نفس باندې باور لري، فکري او تقلیدي اړیکې به نه لري. ۳- انسان روزنه.

۴- پراختیا په لغت کې د تدریجي ( ودې)، ځواکمنۍاو لویوالي خواته د پرمختګ په معنا ده.

**۵**- د سالمو انسانانو، د بنسټیزو صنایعو د پراخې دایرې په څنګ کې د هوښیارو او کاري متخصصانو درلودل، ښښلووونکي لارې او پرمختللي سرکونه، بندونه او د لیږد رالیږد پوره وسایل، بنسټیزې اسانتیاوې او داسې نور د پرمختګ په حال کې هېوادونو موخې او ارمانونه دي.

### اضافي معلومات

**پراختیا**

د پراختیا اصطلاح په پراخه توګه له دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته مطرح شوه، د پراختیا کلمه په لغت کې له پوښ څخه راوتل دي له پوښ نه د راوتلو معنا هماغه دودیزه او فرهنګي ټولنه او په هغې پورې تړلي ارزښتونه دي چې ټولنه باید د رغېدو لپاره له دې دودیزې مرحلې څخه تېره شي.

د پراختیا په تعریف کې باید دا لاندې مهم ټکي په نظر کې ونیول شي: لومړی پراختیا یوه ارزښتي مقوله وبولو. دویم، د ګټې له مفهوم سره د پراختیا نژدیوالي او اړیکو ته پاملرنه ولرو.

د ټولنیزو علومو پوهانو د پراختیا په اړه ډېر تعریفونه وړاندې کړي دي چې دلته په دوو تعریفونو بسنه کوو.

(مایکل تو دارو) باور لري چې پراختیا باید څو اړخیزه وبولو، د ټولنې د اساسي جوړښت، د عامو خلکو د ذهنیت، د ملي بنسټونو په جوړښت کې د بدلونونو غوښتونکی او همدارنګه د اقتصادي ودې چټکتیا، د نا انډوليو کموالی او د مطلق فقرد جرړو ویستل دي.

پراختیا په اصل کې باید دا څرګنده کړي چې په ټولنیز نظام کې ټول خلك د هغوی له غوښتنو سره په همغږې ډول د تېر ژوند له ناسم ( وروسته پاتې) حالت څخه ووزي او د ژوند د داسې حالت او وضعې په لوري روان شي چې غوره مادي او معنوي حالت ولري.

## اته لسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| | | |
|---|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
| د لوست سرلیک | **فرهنگي پراختیا څه شی ده؟** | |
| عمومي موخې | د فرهنګي پراختیا سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• په فرهنګي پراختیا به پوه شي.<br>• فرهنګي پراختیا به بیان کړای شي.<br>• د فرهنګي پراختیا په اړه به مثبت فکر پیداکړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول،لکه: د پراختیا د برخو او اړخونو څخه نوم واخلئ. | دقیقې |
| | **هځونه**<br>د درسي کتاب د ( ٦٧ ) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۶۵-۷۸ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي. | ۱۰دقیقې |
| ۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ. | ۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي. | |
| ۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ. | ۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي. | ۱۵دقیقې |
| **۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- د هر ډول پراختیا بنسټ کومه پراختیا ده؟<br>۲- د هرې ټولنې فرهنګ د کومو موضوعګانو څرګندوونکی دی؟<br>۳- ولې د فرهنګي پراختیا رول حساس او ځلېدونکی وي؟ | ٤-د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- د هر ډول پراختیا بنسټ، فرهنګي پراختیاده.<br>۲-د هرې ټولنې فرهنګ د هغې ټولنې د ټولنیز بدلون او پرمختګ کچه د ځانګړې دورې د ساینس او ټکنالوژۍ، تولید، زده کړې او ادبیاتو د لوړتیا اندازه په ګوته کوي.<br>۳-له دې امله هېڅ ټولنیز او سیاسي بدلون بې له مناسبو فرهنګي شرایطو او غوښتنو څخه ترسره کېدلې نه شي. | ۱۰دقیقې |
| **۵- کورنۍ دنده:**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۳دقیقې |

# نولسم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| | |
|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان |
| د لوست سرلیک | فرهنگي پراختیا |
| عمومی موخې | د پراختیا د اصلي بنسټونو او څانګو سره بلدتیا. |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د پراختیا اصلي بنسټونه او څانګې به وپېژني.<br>• د پراختیا اصلي بنسټونه اوڅانګې به بیان کړای شي.<br>• د پراختیا د اصلي بنسټونو او څانګو په اړه به مثبت فکر پیدا کړي. |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. |

| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | | |
|---|---|---|
| | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د هر ډول پراختیا بنسټ کوم ډول پراختیا ده؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>ولې پراختیا، د سیمه ییزو ملي او فرهنگی لاسته راوړنو ساتلو ته اړتیا لري؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۶۵-۷۸ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه دې راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- د پراختیا د اصلي بنسټونو نومونه واخلئ.<br>۲- ولې فرهنګي لاسته راوړنې د ځانګړې پراختیا ستر ضمانت کوي؟<br>۳- ولې فرهنګ د پراختیا فرعي یا تزییني بعد نه شو ګڼلی؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- د پراختیا اصلي بنسټونه، عبارت دي له:<br>- سیاسي پراختیا، ټولنیزه پراختیا اقتصادي پراختیا او فرهنګي پراختیا.<br>۲- په دې خاطر چې فرهنګي هویت غښتلي کوي او د فرهنګي میراثونو پر وړاندې د خلکو د نوښت او پوهې قوه زیاتوي.<br>۳- څرنګه چې فرهنګ د ټولنې مهم عنصر دی او له پراختیا سره د ژورو اړیکو له مخې د ټولنې داخلي ځواک ګڼل کېږي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- د ربښتني او تل پاتې پراختیا اصلي اساس او بنسټ، فرهنګي پراختیا ده.

۲- غیر فعاله او وروسته پاتې ټولنه د هغې ټولنې له دننه څخه د وروسته پاتې او غیر فعاله وګړو کیسه کوي، سیاله او فعاله ټولنه د خپلو وګړو وړتیا، خوځښت او هوښیاري په ثبوت رسوي.

۳- انسان ټولنیز موجود دی او په ټولنه کې ژوند کوي، له نورو سره د اړیکو درلودلو د ضرورت په اساس هغه ته اړینه ده چې له نورو سره اړیکې ولري. بنسټونه باید له یو بل سره ګډ فعالیتونه ولري، که چېرته هغوی په خپلو کې اړیکې ونه لري، نشي کولی چې خپل ګډ هدف ته ورسیږي.

٤- د فرهنګي پراختیا په برخه کې باید د نړۍ د بېلابېلو هېوادونو له تجربو، په ځانګړې توګه هغه تجربې چې بریالۍ وي، ګټه واخېستل شي.

**اضافي معلومات**

### فرهنګي پراختیا

د فرهنګي پراختیا مفهوم د ۱۹۸۰ م د لومړۍ لسیزې له پیل څخه د یونسکو له خوا د یوه فرهنګي سازمان تر نامه لاندې د پراختیا پر بحثونو کې مطرح شو چې د پراختیا د نورو برخو: اقتصادي پراختیا، ټولنیزې پراختیا او د سیاسي پراختیا پر پرتله له ډېرو ارزښتناکو اړخونو څخه برخمنه ده او زیاتره د ټولنې پر غیر مادي اړتیاوو ټینګار کوي.

هغه ټکي چې د پراختیا په اړه د اهمیت وړ دي دا دي چې کله هم فرهنګي پراختیا د پخوانیو دودونو شلول او د هغو هیرول یو شان بولي. په داسې حال کې چې په یوه معنا (فرهنګي پراختیا) د پخوانیو دودونوسره اړیکو شلول او هېرول نه دي. ځکه چې دودونه د ټولنې د تېرو تجربو زیرمه او پانګه ده. پراختیا د تېرو تجربواو دودونو پر پراخ بنسټ منځ ته راځي نه د هغوی پر نفي او له منځه وړلو. پراختیا داسې بهیر دی چې په هغه کې دودونه او تېرې تجربې په نوې بڼه او د نویو اړتیاوو او شرایطو په بنسټ تجدید نظر او رغول کېږي او له دې لارې ټولنه بډایه کېږي او انسانانو ته باالقوه توان وربښــي.

# شلم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| | | |
|---|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
| د لوست سرلیک | ټولنیزه او سیاسي پراختیا | |
| عمومي موخې | له ټولنیزې پراختیا سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي پیداکړي:<br>• ټولنیزه پراختیا به وپېژني.<br>• ټولنیزه پراختیا به بیان کړای شي.<br>• د ټولنیزې پراختیا او په ټولنه کې د هغې د پرمختګ سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br><br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: زموږ خلك د اسلامي ارزښتونو او فرهنګ په بڼاینه کې کومې دندې لري؟ | دقیقې |
| | **هڅونه**<br><br>د درسي کتاب د (۷۱) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۶۵-۷۸ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱-پراخیتا کوم وخت د دوام او استمرار وړده؟<br>۲- هغه ګڼې ټولنیزې غوښتنې او سببونه چې د پراختیا او ودې د بهیر په برخه کې باید پام ورته وشي کوم دي، بیان یې کړئ؟<br>۳- ستراتیژي د کلیو په هکله څه ډول لارښوونې کوي، یوه یې بیان کړئ.<br>**۵- کورنۍ دنده:**<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي لکه:<br>۱- هغه وخت د دوام او استمراد وړ ده چې ګټه اخېستونکي ورو ورو له دې پروسې سره ملګري شي.<br>۲- عبارت دي له:<br>– د مطلق فقر د له منځه وړلو په برخه کې چې په خواشینۍ سره د نړۍ د وګړو لویه برخه جوړوي مستقیمه، فوق العاده او بېړنۍ مرسته کول.<br>– د بنسټیزو اړتیاوو پوره کول، لکه: خواړه، جامې، کور، د سون توکي او ځینو ټولنیزو غوښتنو ته ځواب.<br>۳- بې ځمکې او فقیرو بزګرانو ته د ځمکو برابرول.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

# یوویشتم لوست

## د لوست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | ټولنیزه او سیاسي پراختیا | |
| عمومي موخې | د سیاسي پراختیا سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې،مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• سیاسي پراختیا به وپېژني.<br>• سیاسي پراختیا به د ټولنیزې پراختیا څخه بېله کړای شي.<br>• د سیاسي او ټولنیزې پراختیا سره به مینه پیداکړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br><br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: له کلیو څخه ښارونو ته کوچیدلو په پایله کې خلک له کومو ستونزو سره مخامخ کیږي؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br><br>سیاسي پراختیا څه شی ده؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۶۵-۷۸) مخ پرانیزي د دې په اړه چې کوم حالتونه دبنسټونو دودې د مثبتو اړخونو ښکارندوی دی، بحث او خبرې وکړي هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. په هغه اصطلاح ګانو چې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي. | ۱۰دقیقې |
| ۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ. | ۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي. | ۱۵دقیقې |
| ۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ. | ۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي. | ۱۰دقیقې |
| ۴- د نوي لوست ارزونه<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱-سیاسي پراختیا کوم وخت مطرح شوه؟<br>۲-سیاسي پراختیا څه شی ده؟<br>۳- آیا د یوه هېواد د ملي پراختیا او پرمختګ عملي کیدل د ښځو له ګډون پرته امکان لري؟ | ٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- سیاسي پراختیا له هغو مفاهیمو څخه ده چې له دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته د پراختیا په ادبیاتو کې مطرح شوه.<br>۲- سیاسي پراختیا له داسې سیاسي شرایطو څخه عبارت ده چې د اقتصادي او صنعتي پراختیا لپاره لازمي او بنیادي ګڼل کېږي.<br>۳- د یوه هېواد د پراختیا او ملي پرمختګ پروسه د ښځو له رول څخه پرته امکان نه لري. | ۳دقیقې |
| ۵- کورنۍ دنده<br>د ورکړل شوې کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | |

**د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه**

۱- عبارت دي له: ۱- د مطلق فقر له منځه وړلو په برخه کې نيغ په نيغه فوق العاده او بيړنی مرسته کول. ۲- د بنسټيزو اړتياوو پوره کول، لکه: خواړه، جامې، کور او د سون توکي.
۲- فقيرو او بې ځمکو بزگرانو ته د ځمکو ورکول، کورنيو او کليوالو ته پرتيټه بيه يا په وړيا توگه د کرنيزومحصولاتو ورکول او د ځمکو د اصلاحاتو تر سره کول.
۳- ۱- بيکاري. ۲- د کرنيزو ځمکو لږوالی. ۳- د سم دولتي پلان نشتوالی.
٤ـ د سياسي پراختيا څو مثبت اړخونه په لاندې توگه دي:
۱- دولتي واکداري يا د هېواد يو موټيټوب. ۲- ملت جوړونه او د ملي يووالي رامنځته کول. ۳- په تصميم نيولو کې د خلکو گډون. ٤- د روغو او مسؤولو مطبوعاتو ازادي او د ډله ييزو رسنيو وده. ۵ - د زده کړې د امکاناتو برابرول.
۵- د يوه هېواد د پراختيا او ملي پرمختگ د منځته راتلو د عملي کيدو پروسه د ښځو له فعال گډون څخه پرته له ستونزو سره مخ کېږي. ښځې د بشري ټولنې نيمه برخه ده او کولی شي چې د پراختيا په عملي کيدو کې ښه رول ولوبوي. په دې شرط چې هغوی د اسلامي عقايدو او ارزښتونو په چوکاټ کې د تاريخ د خوځيدونکي ځواک په توگه د سياسي، ټولنيز او اقتصادي ژوند ډگرته راودانگي، ښځه د کورنۍ ټولنې او نړۍ کلي ده.

**اضافي معلومات**

**سياسي پراختيا**

پراختيا هغه بهير دی چې د سياسي مشارکت د تثبيت او شکل لپاره مناسبه زمينه برابروي او پايله يې د يوه سياسي نظام د ځواکمنۍ زياتيدل دي.

ټولنيزه پراختيا: له هغه مفاهيمو څخه ده چې ديوې ټولنې د خلکو د ژوندانه د څرنگوالي سره نېږدې اړيکه لري، څرگند اړخونه يې زياتره د مطلوبو شرايطو د برابرولو له لارې په ټولنه کې د ژوندانه د عمومي کچې لوړيدو، د تنگسې له منځه وړلو، ښوخوړو، روغتيا، استوگنځي مشغولتيا، زده کړې او د وزگارتيا د وختونو څرنگوالي ته پاملرنه ده.

ټولنيزه پراختيا د يوې ټولنې د خلکو په ټولنيز ژوند کې د وضعيت د ښه کيدو په لټه کې ده. ټولنيزه پراختيا د ځينو مفاهيمو په پرتله، لکه: اقتصادي پراختيا او اقتصادي وده، يو څه پراخه برخه په برکې نيسي، په نوې پېړۍ کې په مدني ټولنې، دموکراسۍ، ټولنيز عدالت، ټولنيزې لوړتيا او ټولنيزې پانگې پورې اړوند بحثونه، د ټولنيزې پراختيا محور تشکيلوي.

# دوه ویشتم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| | | |
|---|---|---|
| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
| د لوست سرلیک | اقتصادي پراختیا | |
| عمومي موخې | د هېوادونو له چټکو پرمختګونو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې،مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د هېوادونو له چټکو پرمختګونو سره به بلدتیا پیدا کړي.<br>• وروسته پاتې هېوادونه به د پرمختللو هېوادونو څخه بیل کړای شي.<br>• د وروسته پاتې او پرمختللو هېوادونو د مطالعې سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل ، د حاضرۍ اخېستل، د کور نی د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: ښځې د یو هېواد د پراختیا په پلي کولو کې څه رول لري؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>د درسي کتاب د ( ۷۵ ) مخ په انځورونو کې څه شی وینئ؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| ١- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (٧٥-٧٨ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>٢- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>٣- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>١- له اقتصادي ودې څخه موخه څه شی ده؟<br>٢- اقتصادي پراختیا د کومو نښو له مخې اندازه کېږي؟<br>٣- کوم وخت ویلي شو چې په یوه ټولنه کې اقتصادي پراختیا رامنځته شوې ده؟<br>**۵- کورنی د نده**<br>د کورنی دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ١- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>٢- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>٣- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>١- له اقتصادي پراختیا څخه مقصد په ټولنه کې د پانګې او تولید ډېروال دي.<br>٢- اقتصادي پراختیا د سړي سر لاسته راوړنو له نښو نښانو څخه اندازه کیدلی شي.<br>٣- که په یوه ټولنه کې د اوسنی دورې د تولید کچه د پخوانی دورې ترکچې پورته شي، ویلی شو چې په دغه ټولنه کې پراختیا رامنځته شوې ده.<br>٥- زده کوونکي د کورنی دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ١٠دقیقې<br>١٥دقیقې<br>١٠دقیقې<br>٣دقیقې |

# دروېشتم لوست

## د لو ست وخت ( يو درسي ساعت)

| د سر ليکونو مطلبونه | د مطلبونو بيان | |
|---|---|---|
| د لوست سرليک | **اقتصادي پراختيا** | |
| عمومي موخې | د اقتصادي پراختيا د پرمختګ سره بلدتيا. | |
| (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | زده کوونکي د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د اقتصادي پراختيا پرمختګ به وپېژني.<br>• د اقتصادي پراختيا پرمختګ به بيان کړای شي.<br>• د اقتصادي پراختيا له پرمختګ سره به مثبت فکر پيدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ييز فعاليتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتيا وړ وسايل | کتاب، تخته، تباشير، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحريري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده يا ليدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعاليتونه | **لو مړني فعاليتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د ميز او څوکيو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخيستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه يوه پوښتنه کول، لکه: څوک ويلی شي چې يوه ټولنه کوم وخت د ودې په لورحرکت کوي. | ۵دقيقې |
| | **هڅونه**<br>ولې داسې ويل کېږي چې پراختيا يو اوږد مهاله جريان دی؟ | ۲ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ١- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (٧٥-٧٨) مخ پرانیزي په دی اړه چې دتولید هر ډول ډېربښت ته پراختیا نه شو ویلای، بحث او خبرې پرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>٢- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>٣- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>١- څه وخت کولی شو ووایو چې ټولنې د پرمختګ په لاره کې قدم ایښی دی؟<br>٢-د اقتصادي پراختیا له مخې په ټولنه کې کوم بدلونونه رامنځته کېږي؟<br>٣- اقتصادي وده څه شی ده؟<br>**۵- کورنۍ د نده**<br>د کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ١- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>٢- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>٣- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤-د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>١- کله چې یوه ټولنه له لارو او مناسبې ټکنالوژۍ څخه په ګټه اخېستلو کې خپلو تولیدي ظرفیتونو ته پراختیا ورکړي او له خپلو سرچینو څخه په ښه توګه ګټه واخلي ویلی شو چې د پراختیا په لاره کې یې قدم ایښی دی.<br>٢- د اقتصادي پراختیا له کبله د ټولنې اقتصادي او ټولنیز بنسټونه بدلون مومي چې د دغه بدلون پایله په لومړۍ درجه کې په اقتصادي نابرابرۍ کې د کموالي او د ټولنې د تولید، وېش او لګښت په برخو کې به بدلون راولي.<br>٣- اقتصادي وده یو اړخیز مفهوم لري او له هغې څخه موخه په ټولنه کې د پانګې او تولید ډېروالی دی او معمولاً د سرې سرعاید د کچې له مخې اندازه کېږي.<br>٥- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ١٠دقیقې<br>١٥دقیقې<br>١٠دقیقې<br>٣دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- پخوا د هېوادونو د پراختیا او پرمختګ معیار د ټولنې د وګړو سر عاید وه، خو په دې نظر باندې نیوکې رامنځته شوې چې د هېوادونو د پراختیا او پرمختګ معیار یوازې اقتصادي پراختیا او یا د سړي سر عاید لوړېدل نه دي.

۲- د پراختیا وده د انساني او ټولنیزو تولیدي او فزیکي ظرفیتونو له زیاتوالي او اقتصادي پراختیا سره مله ده.

اقتصادي پراختیا د ټولنې اقتصادي او ټولنیز بنسټونه بدلوي چې داسې تغییرات او بدلونونه په لومړي سرکې د ټولنې تولید، ویش او لګښت کې د اقتصادي نابرابریو د کموالي لامل ګرځي.

۳- اول- د ټولنې د خلکو د شتمنیو ډېرول او سوکاله کول(او د بیوزلۍ له منځه وړل).

دویم- د کار او بوختیاوو رامنځته کول چې دغه دواړه موخې د ټولنیز عدالت رامنځته کېدونکي دي.

۴- اقتصادي وده یو اړخیز مفهوم لري چې له هغې څخه موخه په ټولنه کې د شتمنۍ او تولید زیاتوالی دی چې معمولاً د سړي سرعاید په اساس اندازه کېږي، په دې اساس وده یو کمي مفهوم دی، اقتصادي پراختیا د تولید د زیاتوالي په څنګ کې په یوه بله پدیده باندې هم دلالت کوي چې کېدلای شي د کیفي (ښرنګوالي) په مفهوم وپېژندل شي.

۵- کله چې یوه ټولنه له ښو لارو او مناسبې ټکنالوژۍ څخه پر استفاده سره خپلو تولیدي ظرفیتونو ته زیاتوالي ور کړي او له خپلو شتو څخه په ښه ډول ګټه واخلي ویلای شو چې د پراختیا په لاره کې یې قدم پورته کړی دی.

٦- د اقتصادي جوړښت په بدلون سره په ټولنیز جوړښت کې کوم بدلونونه راځي؟

د اقتصادي جوړښت د بدلون له امله د ټولنې ټولنیز بنسټونه بدلېږي. د تولید د کمي ( اندازه) په څنګ کې ټولنیزبنسټونه هم بدلون مومي، نظریې هم بدلېږي او هره ورځ یو نوښت رامنځته کېدای شي.

### اضافي معلومات

**اقتصادي پراختیا**

له تولیدي منابعو څخه له داسې ګټې اخیستنې څخه عبارت ده چې په یوه ټولنه کې د سړي سرعوایدو بالقوه پرله پسې ودې لامل وګرځي. اقتصادي پراختیا داسې لاسته راوړنه ده چې په هغه کې د تولید علمي او فني بنسټ له دودیز وضعیت څخه نوي او مدرن حالت ته بدلون مومي. په ټولیز ډول ویلی شو چې اقتصادي پراختیا هغه بهیر دی چې په هغه کې د ټولنې اقتصادي او سیاسي بنسټ بدلیږي په داسې ډول چې د بدلون پایله په لومړۍ درجه کې د اقتصادي نا برابریو کموالی او د ټولنې په تولیدي، ویش او د مصرف په ډولونو کې د بدلون د زمینې برابرول وي.

**فرهنګي پراختیا**

له فرهنګي پراختیا څخه موخه هغه بدلون دی چې په یوه ځانګړې ټولنه کې د تمدن د نه په شاتلونکو فرهنګي عناصرو د غونډېدو له لارې، صورت نیسي او د هغې په اثر باندې خپل کنترول عملي کوي. پردغه نه په شاتلونکي غونډېدنه کې، پوهنه، فنون، زده کړه او تخنیك پر هغو عناصرو باندې چې د مخه موجود وو او له هغو څخه جلا شوي وو، ورزیاتیږي.

# ځلور ویشتم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **د پراختیا او وروسته پاتې کېدلو لاملونه** | |
| عمومي موخې | له پرمختللو او وروسته پاتې هېوادونو سره بلدتیا. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• پرمختللي او وروسته پاتې هېوادونه به وپېژني.<br>• پراختیا موندونکي او وروسته پاتې هېوادونه به بیان کړای شي.<br>• د پراختیا موندونکو او وروسته پاتې هېواونو له مطالعې سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه،پوښتنې، ځوابونه، خبرې ا ترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د ژوند د سطحې په تړاو په نړۍ کې څو ډلې انسانان ژوند کوي؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>پراختیا موندونکي هېوادونه کوم دي؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۷۹-۸۳ ) مخ پرانیزي، او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱-د ژوند دسطحې په تړاو په نړۍ کې څو ډلې انسانان ژوند کوي؟<br>۲- ایا د هېوادونو د لرغونتیا او عمر لامل د هغوی بیوزلی او شتمنی ده؟<br>۳-آیا د ذکاوت کچه د نژاد ډول او د پوستکې رنګ د هېوادونو په پرمختګ کې جوړونکی رول لري؟<br>**۵- کورنۍ د نده**<br>د کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- په نړۍ کې دوه ډلې انسان ژوند کوي.<br>– لومړۍ ډله هغه انسانان دي چې په ارام خیال او له مادي ستونزو څخه پرته د ځان او اولاد لپاره د ښه او بسیا ژوند کوښښ کوي.<br>– دویمه ډله هغه انسانان دي چې د هغوی ژوند د بیوزلۍ او له څه بې برخې توب سره مل دی.<br>۲- نه! ځکه چې مصر له درې زره کلن تاریخ څخه د زیات عمر هېواد لري پرمختګ یې نه دی کړی او د امریکا او کاناډا هېوادونه چې له ۱۵۰ کلونو څخه ډېر عمر نه لري اوس د پرمختللو او شتمنو هېوادونو په ډله کې شمېرل کېږي.<br>۳-د ذکاوت کچه، د نژاد ډول او د پوستکې رنګ نشي کولای چې د هېوادونو په پرمختګ او وروسته پاتې والی کې رول ولوبوي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

# پنځه ویشتم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **د پراختیا او وروسته پاتې کېدلو لاملونه** | |
| عمومي موخې | د صنعتي او وروسته پاتې هېوادونو پېژندنه. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د وروسته پاتې هېوادونو ګډې ځانګړتیاوې به وپېژني.<br>• د وروسته پاتې هېوادونو ګډې ځانګړتیاوې به بیان کړای شي.<br>• د صنعتي هېوادونو د پراختیا او وروسته پاتې هېوادونو له لاملونو سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د ژوند د سطحې په تړاو په نړۍ کې څو ډلې انسانان ژوند کوي؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>پراختیا موندونکي هېوادونه کوم دي؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| ١- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب ( ۷۹-۸۳ ) مخ پرانیزي په دې اړه چې ولې ځینې اقتصاد پوهان د طبیعي سرچینوکموالی، د پانګې نه جوړېدل او د سیما نه شتون د هېوادونو د بېرته پاتې والي لامل بولي،بحث اوخبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>٢- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>٣- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>۴- **د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>١- د وروسته پاتې هېوادونو دوه ګډې ځانګړتیاوې بیان کړئ.<br>٢- هغه هېوادونه چې د طبیعي زېرمو څخه بې برخې دي او د صنعت له مخې لوړو پوړوته رسیدلي دي نومونه یې واخلئ.<br>٣- په عمومي توګه کوم لاملونه د یو هېواد انحطاط او وروسته پاتې والي ته لار برابروي؟ بیان یې کړئ.<br>**۵- کورنۍ د نده**<br>د کورنۍ دندې په هکله ځرګندونې وکړئ. | ١- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>٢- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>٣- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>١- د خلکو د ژوند د کچې ځرنګوالی او ټیټوالی وزګارتیا، لږکارونه، دکار او دکاري قوتونو څخه لږه اندازه ګټه اخېستنه ده.<br>٢- د جاپان، کوریا او سنګاپور هېوادونه.<br>٣- کورني لاملونه، د سیمې هېوادونه او ګاونډیان.<br>٥- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | وخت په دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

**۱- د یو پراختیا موندونکي او وروسته پاتې هېواد تر منځ توپیر بیان کړئ**

پرمختللي هېوادونه هغه هېوادونه دي چې پوره ډول صنعتي شوي وي او د یو پېچلي اقتصادي سیستم لرونکي وي. چې له ۲۵٪ څخه ډېر خالص کورني تولیدات یې له صنعتي فعالیتونو څخه تشکیلېږي. ځینې عالمان د وروسته پاتې هېوادونو د وروسته پاتې کېدلو لامل د طبیعي زیرمو کموالی او یا له هغې څخه دګټې نه اخېستل، په کافي ډول د پانګې اوسپما نشتوالی ګڼي.

**۲- د وروسته پاتې هېوادونو ګډې ځانګړتیاوې بیان کړئ**

- د خلکو د ژوند د سطحې او کیفیت ټیټوالی.
- وزګاري او د کارونو نشتوالی او د مزدورۍ د اندازې ټیټوالی.
- له کرنیزو تولیداتو سره ډېره اړیکه او یا د ( تولیدي سرچېنو) د لومړنیو توکو لېږدول.
- اقتصادي تړونونه او په نړیوالو اړیکو کې زیانونه لیدل.
- د ناسم او کمزوري سیاسي نظام جوړښت.
- د منځنیو طبقو کمزورتیا.
- ټولنیزه نابرابري.
- د منځنیو طبقو د خلکو کمزورتیا.

**۳- د پراختیا په حال کې هېوادونو د وروسته پاتې والي لاملونه کوم موضوعات تشکیلوي؟**

د پراختیا په حال کې هېوادونو د وروسته پاتې والي لاملونه عبارت دي له:

- د نفوسو غیر منظم ډېرښت، د پوهو او ماهرو کسانو محدودیت.
- د ملي او سرمایې د امکاناتو لږوالی.

**۴- کوم لاملونه د یوه هېواد په پرمختیا او یا وروسته پاتې والي کې رول لري؟**

د طبیعي زیرمو کمښت، د پانګې د مرکزیت نشتوالی او په کافي اندازه د سپما نشتوالی د یو هېواد په وروسته پاتې والي کې رول لري.

هغه لاملونه چې د یوه هېواد په پرمختګ کې رول لري عبارت دي له:

- د پوهو او متخصصو اشخاصو درلودل.
- طبیعي زېرمې.
- کافي پانګه.
- له ټکنالوژۍ څخه ګټه اخېستنه.

**زموږ د هېواد د وروسته پاتې کیدلو کورني لاملونه څه دي؟**

د څو وروستيو لسيزو ناامنی، نالوستي، د مالي اسانتياوو او شتمنيو لږوالی، زموږ د هېواد د وروسته پاتې والي له مهمو لاملونو څخه ګڼل کېږي.

**۲-زموږ د هېواد د وروسته پاتې والي بهرني لاملونه څه دي؟ بيان يې کړئ.**

هغه بهرني لاملونه چې په يوه ډول سره زموږ د هېواد په وروسته پاتې والي کې اغېزناك رول لري، هغه هېوادونه دي چې د خپلوځانګړو موخو، د سياسي او اقتصادي ګټو د لاسته راوړلو لپاره تل جګړو، ناامنيو او شخړو ته لمن وهلې ده.

**اضافي معلومات**

**د پراختيا په حال کې هېوادونه**

هغه هېوادونو ته ويل کېږي چې په چټکۍ سره د صنعتي کيدو په حال کې دي او د سړي سرعايد يې په چټکۍ سره وده کوي، ځرګندې بيلګې يې د سهيل لويديځې اسيا هېوادونو، لکه: هانکانګ، سينګاپور، جنوبي کوريا، تايلنډ او تايوان څخه عبارت دي چې اقتصادي وده يې په دې ورستيو کلونو کې ځرګنده او د سيمې زياتره بازارونه يې ځانته ځانګړي کړي دي.

ځينې ټولنپوهان په دې اند دي چې د دې هېوادونو اقتصادي وضعه د لويديځو هېوادونو له اقتصادي وضعې سره زيات توپير لري.

**بيوزله او غريب هېوادونه**

هغو هېوادونو ته ويل کېږي چې له صنعتي نظره په ډېره ټيټه کچه کې قرار لري او مادي بيوزلې پکې په ښکاره ډول تر سترګوکېږي. زياتره خوار هېوادونه په اسيا او افريقا کې پراته دي. په دې هېوادونو کې يو کم شمېر خلك بډاي دي او زياتره يې د خوړو، استوګنځي، روغتيا، ښوونې او روزنې او په لنډه توګه د ژوندانه د لومړنيو اړتياوو له درکه په ډېره ټيټه کچه کې قرار لري. هر هغه څه چې ځرګند دي، دا دي چې د ټولو ( شتمنو، نيمه شتمنو او بيوزلو) هېوادونو وضعيت ثابت نه دی او تل تغيير او بدلون مومي. په دوو وروستيولسيزو کې د هغو هېوادونو د صنعتي کيدو شاهدان يو چې هغو ته به يې نيمه صنعتي او يا د پرمختګ په حال کې هېواودونه ويل.

**وروسته پاتې ساتل شوي هېوادونه**

وروسته ساتل شوي هېوادونه هغه هېوادونه دي چې د دريمې نړۍ کم پرمختللي، د پراختيا په حال کې او د سهيل په نومونو يې يادوي، د دې هېوادونو په باره کې د وروسته ساتل شوو مفهوم له يوه ځانګړې فکر څخه را ولاړ شوی دی چې د نړۍ د وروسته ساتل شوو او وروسته پاتې هېوادونو په هکله وجود لري. د دې فکر پر بنسټ داسې ځرګنديږي چې د دريمې نړۍ په نامه نومول شوې هېوادونو د وروسته پاتې والی لاملونه له پرمختللو هېوادونو سره د هغوی د زيښناکګری په چوکاټ او د اړيکو د نابرابري په نتيجه کې رامنځته شوي دي. له دې امله ويلی شو چې پرمختللي هېوادونه د دې هېوادونود نه پراختيا لامل ګرځيدلي دي، نو دا به بهتره وي چې د هغوی په باره کې د وروسته ساتل شوو مفهوم وکارول شي نه د وروسته پاتې.

# شپږویشتم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **پراختیا او د ژوند چاپېریال** | |
| عمومي موخې | د ژوند د چاپېریال پېژندنه. | |
| (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د ژوند چاپېریال به وپېژني.<br>• د ژوند چاپېریال به بیان کړای شي.<br>• د ژوند د چاپېریال د پاک ساتلو سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولګي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br><br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولګي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنۍ د ندې کتل او د تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د هېواد دوروسته پاتې والي د دوو لاملونو نومونه واخلئ. | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br><br>د درسي کتاب د ( ۸۵ ) مخ په انځورونو کې څه شی وينئ؟ | ۲ دقیقې |

| ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۸۵-۹۱ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه اواصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړي وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- د ژوند چاپېریال څه شی دئ؟<br>۲- طبیعي زېرمې تعریف کړئ؟<br>۳- نه رغېدونکي سرچینې کومې دي؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- هغه سیمې چې ژوند پکې دوام لري.<br>۲- طبیعي زېرمې له هغو شیانو څخه عبارت دي چې په طبیعت کې الله (جَلّ جَلاَلُه) پیدا کړي دي او ژوندي موجودات هغه ته اړتیا لري او له هغو څخه ګټه اخلي.<br>۳- عبارت له هغو سرچینو څخه دي چې په تدریجي او پرله پسې استعمال سره کمېږي او په پای کې خلاصیږي، لکه: د ډبروسکاره، مالګه، تیل او داسې نور کانونه.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

# اووه ویشتم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | پراختیا او د ژوند چاپېریال | |
| عمومي موخې | د ژوند د چاپېریال د مهمو موضوعگانو پېژندل. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• د ژوند د چاپېریال ډېرې مهمې موضوعگانې به وپېژني.<br>• د ژوند د چاپېریال ډېرې مهمې موضوعگانې به بیان کړای شي.<br>• د ژوند د چاپېریال د مهمو موضوعگانو سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارټونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولگي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولگي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخېستل، د کورنی د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د ژوند چاپېریال څه شی دی؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br>آیا پوهېږئ طبیعي سرچینې زموږ په ژوند کې څه اغېزې لري؟ | ۲ دقیقې |

| ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو ووېشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۸۵-۹۱ ) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه دې خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه دې راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح گانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له ځو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولگیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توگه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له ځو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- د ژوند د چاپېریال د ککړتیا د لاملونو یوازې نومونه واخلئ.<br>۲- کوم لاملونه د اوزون د قشر د سوري کیدلو سبب گرځي؟<br>۳- تیزابي بارانونه د ځمکې پر مخ د کومو زیانونو لامل گرځي؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د کورنۍ دندې په هکله څرگندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح گانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح گانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- د هوا د ککړتیا لاملونه عبارت دي له:<br>د ځمکې د مخ د تودیدلو د اوزون د قشر کموالی، د ښارو ځمکو پراختیا او د ښې خاورې کموالی د هوا ککړتیا او تیزابي بارانونه، د ډېرانونو نه پاکول او د ځنگلونو وهل.<br>۲- هغه لوگي چې په کار خانوکې د تېلو او روغنیاتو د سوزیدو په پایله کې پیدا کېږي د اوزون پر طبقه باندې تخریبوونکي اغېزه کوي ان تر دې چې د دې طبقې د سوري کیدلو لامل کېږي.<br>۳- تېزابې بارانونه د ځنگلونو د تخریب، وښو د پوښښ ان چې د انسانانو په لاس جوړوشوو ودانیو او د ځمکې پر مخ او ترځمکې لاندې د اوبو د زېرمود ککړتیا لامل گرځي.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرگندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمگړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

# اته ویشتم لوست

## د لو ست وخت ( یو درسي ساعت)

| د سر لیکونو مطلبونه | د مطلبونو بیان | |
|---|---|---|
| د لوست سرلیک | **پراختیا او د ژوند چاپېریال** | |
| عمومي موخې | د پایدارې پراختیا او د ژوند چاپېریال پېژندنه. | |
| (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې) | زده کوونکي به د دې لوست له لوستلو وروسته په لاندې موخو برلاسي شي:<br>• پایداره پراختیا او د ژوند چاپېریال به وپېژني.<br>• پایداره پراختیا او د ژوند چاپېریال به بیان کړای شي.<br>• د پایدارې پراختیا او د ژوند چاپېریال سره به مینه پیدا کړي. | |
| د ښوونې لارې چارې | ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې، ځوابونه، خبرې اترې او لکچر. | |
| د زده کړې د اړتیا وړ وسایل | کتاب، تخته، تباشیر، مارکر، چارتونه، قلمونه، نقشې او انځورونه. | |
| د ارزونې لارې چارې | شفاهي، تحریري، عملي، پوښتنه، ځواب او مشاهده یا لیدنه. | |
| په ټولگي کې د لوست او زده کړې فعالیتونه | **لو مړني فعالیتونه**<br><br>سلام اچول او روغبړ کول، د میز او څوکیو سمول، د ټولگي د پاکوالي کتل، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ د ندې کتل او له تېر لوست څخه یوه پوښتنه کول، لکه: د ځمکې د زغم اندازه څه شی دی؟ | ۵دقیقې |
| | **هڅونه**<br><br>- له تل پاتې پراختیا څخه موخه څه شی دی؟ | ۲ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي په مناسبو ډلو وویشئ او لارښوونه ورته وکړئ چې د مدني زده کړو د درسي کتاب (۸۵-۹۱) مخ پرانیزي او د نوی لوست د فعالیت په اړه خبرې وکړي. هغه ستونزمن لغتونه او اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه راوباسي.<br>۲- هغه لغتونه او اصطلاح ګانې چې زده کوونکو له متن څخه را ایستلي دي، پرتخته باندې ولیکئ او معنا یې کړئ.<br>۳- له څو زده کوونکو څخه چې لوست یې ښه زده کړی وي او په خپله خوښه حاضر وي چې هغه تشریح کړي، وغواړئ چې د تختې مخې ته راشي او خپلو ټولګیوالو ته لوست تشریح کړي. په پای کې زده کوونکو ته لوست په ساده توګه تشریح کړئ.<br>**۴- د نوي لوست ارزونه**<br>له څو زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>۱- د پایدارې پراختیا څخه موخه څه ده؟<br>۲- اسلام د ژوند د چاپېریال د ساتلو په اړه څو شیان اړین ګڼي؟<br>۳-د ژوند د چاپېریال د ساتنې لپاره باید کوم کاورنه ترسره کړو؟<br>**۵- کورنۍ دنده**<br>د کورنۍ دندې په هکله څرګندونې وکړئ. | ۱- په وېشل شوو ډلو کې لوست د یو او بل پر مرسته لولي او د نوي لوست د فعالیت په اړه خبرې کوي. هغه اصطلاح ګانې چې پرې پوه شوي نه وي، له متن څخه یې راوباسي.<br>۲- هغه اصطلاح ګانې چې ښوونکي پر تخته باندې لیکلي او معنا کړي یې دي، له تختې څخه یې په خپلو کتابچو کې لیکي.<br>۳- هغه زده کوونکي چې لوست یې ښه زده کړی وي، په خپله خوښه په خپل وار لوست تشریح کوي.<br>٤- د خپلې پوهې په اندازه پوښتنو ته ځوابونه ورکوي، لکه:<br>۱- له پایدارې پراختیا څخه مطلب دا دی چې انسان باید د خپلو اړتیاوو د له منځته وړلو لپاره له طبیعي زیرمو څخه معقوله ګټه واخلي، څکه چې راتلونکي نسلونه هم له دغو سرچېنو څخه د ګټه اخېستلو حق لري.<br>۲- اسلام درې شیان مطلوب ګڼي.<br>– د الله (جَلَّ جَلاَلُه) شکر ادا کول د هغو نعمتونو په وړاندې چې د ځمکې په مخ، اسمانونو او د سمندرونو په تل کې یې د انسان لپاره پیدا کړي دي.<br>– له ټولو طبیعي زېرمو څخه چې پر ځمکه ، سمندرونو او اسمانونو کې شته دي دوامداره، پایداره او رغنده ګټه اخېستل.<br>– د الله (جَلَّ جَلاَلُه) له نعمتونو څخه له هر ډول نجاست او کثافت څخه پرته پاکه ګټه اخېستنه څکه چې نظافت د شریعت غوښتنه او د ایمان برخه ده.<br>۳- باید نیالګي کېنوو، او چاپېریال پاک وساتو، اوبه بې ځایه مصرف نه کړو، کثافات او خځلې په یوه ټاکلي ځای کې واچوو، سیندونه او پارکونه پاک وساتو، ونو ته اوبه ورکړو او د هغو د څانګو له پرې کولو څخه ډډه وکړو او ځارویو ته زیانونه ونه رسوو.<br>۵- زده کوونکي د کورنۍ دندې په هکله د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي او خپلې کاري نیمګړتیاوې پوره کوي. | ۱۰دقیقې<br>۱۵دقیقې<br>۱۰دقیقې<br>۳دقیقې |

## د لوست په متن کې د ورکړل شوو پوښتنو ځوابونه

۱- د زغم او حوصلې وړ طاقت: د نفوسو د شمېر په معنا دی چې په یوه چاپېریال کې ژوند کوي او هغه چاپېریال وکولای شي چې په دوامداره توګه د هغې نفوس او اړتیاوې تأمین کړي.
۲- که له طبیعي زیرمو څخه معقوله ګټه ترلاسه نشي او ګټه اخستونکي له خپلو اړتیاوو څخه ډېره او د اړتیاوو په پام کې نیولو پرته استفاده وکړي، دا عمل اسراف دی او اسراف په اسلام کې حرام دی.
۳- دا ډول سرچینې د تدریجي او پرله پسې استفادې په پایله کې کمېږي او په پای کې له منځه ځي، لکه:د ډبرو سکاره، مالګه، تیل، ګاز او نور کانونه.
٤- که له طبیعي زیرمو څخه په معقول او منطقي ډول ګټه واخېستل شي او د ژوند له چاپېریال سره چې څرنګه ښایي زړه سواندی چلند وشي، هېڅکله پراختیا د ژوند د چاپېریال د ککړتیا لامل نه ګرځي.
٥-د ژوند د چاپېریال ککړتیا د انسانانو او ټولو ژوندیو ژوو د ډول ډول ناروغیو د ډېروالي لامل ګرځي او د وچکالی یا برعکس د سختو سیلابونو، توپانونو او پېښنو د رامنځته کېدلو لامل ګرځي.
٦- د ځمکې پر مخ له اندازې څخه د زیاتو ګازونو جمع کېدل او ډېرېدل د ګاز د کلک قشر د رامنځته کېدلو لامل ګرځي، لکه: پلاستیکي پوښ چې د ځمکې له سطحې څخه د اضافه حرارت د ګرځېدلو مخه نیسي چې د ځمکې د هوا د تودوالي لامل کېږي.
۷- د ځمکې پر مخ د تودوخې درجې لوړوالی د ګلخانه یي ګازونو د ډېریدلو او په تنفسي هوا کې د اړتیا وړ اکسیجن د لږوالي لامل کېږي، همدارنګه د ځمکې پرمخ د اوزون د ساتونکي پوښ د زیانمن کېدلو لامل ګرځي، داګازونه د اوزون په پوښ باندې تخریب کوونکي او ورانوونکې اغېزې لري.

### اضافي معلومات

**د استوګنې چاپېریال څه شی دی؟**

هر هغه چاپېریال چې ژوند پکې جاري وي، د استوګنې چاپېریال ورته وایي. یا په بله ژبه د ټولو بهرنیو عواملو ټولګه چې د ژوندیو موجوداتو په ژوندانه باندې اغیزه اچوي، د استوګنې د چاپېریال په نوم یادېږي.

**اکولوژي څه شی ده؟** هغه علم دی چې د استوګنې له چاپېریال سره د ژوندیو موجوداتو د اړیکو په باره کې بحث کوي.

**د اکولوژي له مطالعې څخه هدف څه شی دی؟** د هغې عمده موخه د ( طبیعت د تعادل) ساتل او له طبیعي شتمنیو څخه علمي ګټه اخېستنه ده.

د استوګنې د چاپېریال جوړونکی عوامل عبارت دي له:

- ژوندي فکتورونه لکه: نباتات، ژوي، او مایکرو ارګانیزم.
- غیر ژوندي فکتورونه

الف: محیطي فکتورونه، لکه: د تودوخې درجه، اوبه، باد، باران، لمر، اتموسفیر.
ب: خاورین فکتورونه

ج: تړلنيز فکتورونه:

د استوګنې د چاپېريال ساتنې د حل لارې:

الف: د استوګنې په چاپېريال کې د ونو اهميت:

ونې د استوګنې د چاپېريال مهمه برخه ده په طبيعت کې د ژوندانه د دوراني سيستم په ټينګښت کې بنسټيز رول لوبوي.

ب: د زړيدو يا ورستيدو څخه مخنيوی: ونې د څانګو او پاڼو په مرسته د باد د ګړنديتوب مخه نيسي. د ونو ريښې او واښه د خاورې ساتنه کوي او له ورستېدو څخه يې ساتي د سيلابونو، باد او باران له تخريب څخه مخنيوي کوي.

ج: تفريح ځايونه: د ښاري شنې فضا زياتيدل، د ښار د هوا د ککړتيا په مخنيوي کې يو مهم عامل شمېرل کېږي او د ښار د مختلفو ککړتيا وو لکه: د غږ ککړتيا، د تودوخې د درجې د راکمولو، د نسبي رطوبت او د وړو د جذبيدو لامل ګرځي. ونې هوا په حرکت راولي او د هوا د وچوالي څخه مخنيوي کوي.

د: د اوبو او هوا په بدلون باندې اغېز: د شنو بوټو په ځانګړې توګه د ځنګلونو موجوديت د چاپېريال د هوا د تودوخې په بدلولو او راکمولو باندې اغېزه لري او د ځمکې د مخ فصلي او ورځنی تودوخه معتدلوي او د اوبو او هوا د اعتدال لامل ګرځي، ځکه چې په اوړي کې د لمر د حرارتي انرژي يوه برخه جذبوي او د ځمکې د تودوخې د کميدو لامل ګرځي او په ژمي کې د هغې لپاره د يوه پوښ حيثيت پيدا کوي او د حرارت مخه يې نيسي.

هـ: د ځنګلونو اقتصادي نقش: د استوګنې په چاپېريال کې د ځنګلونو موجوديت ځانګړې اهميت لري. د هوا پر تصفيه کيدو سر بېره، ځنګلي محصولات، لکه: لرګي او نور فرعي محصولات يې د زرګونو لويو او وړو توليدي ماشينونو څرخونه په حرکت راولي. يوه ونه په کال کې(۳۵) مکعب متره خالص اکسيجن توليدوي او (۳۴۳۷۵) مکعب متره کاربن ډای اکسايد هم جذبوي او کله يې ازاد وي.

ز: له طبيعي او موسمي پېښو څخه مخنيوي: د ونو او ونو پوښښ يوه اواره سطحه منځته راوړي ده. د سيلاب او واورې د ښوييدو (برف کوچ) خطرونه يې کم کړي دي.

د هوا د ککړتيا تړلنيزې اغيزې

- د خلکو په منځ کې د ناروغيو خپريدل.
- د نارينه وو عقيم کيدل.
- د ښځو د اميدوار کيدو د قوې را ټيټول.
- د عمر لنډيدل.
- د نوو پيدا شوو ماشومانو د څېرې بدرنګيدل او يا معلول کيدل.
- پر کوچنيانو او لويانو کې ذهني ګډوډي.
- بې ځايه سترې کيدل.
- د فردي شخړو پراختيا.